


شـــپاړسم کال، دربیمه، پرلپـــسي ۱۱۶مه ګڼه،
حوت–حمل۱۳۹۹ل، رجب المرجب۱۴۴۱هـ ق، مارچ۲۰۲۰م

## فرهنګي غازیانو ته ولې نـړۍ ګوته په غــاښ ده؟

- له تړون وروسته د پیوستون مرحله
- د شاهیکوټ د معرکې ۱۸مه کلیزه
- کوچنی ویروس او د سترې نړۍ بې سارې بې وسي
- د کب د۱۹ مې یاداښت
- بندیان د وسیلې په توګه

## د اشغال خاتمې د تړون په اړه د سیاسي، جهادي او علمي شخصیتونو تأثرات او ارزونې !!

### محترم الحاج شیرمحمد عباس ستانکزی:

امریکا له موږ سره د خپل شکست او زموږ د بېچاره ملت او اتلو مجاهدینو د بـري او میرانې معاهده امضا کړه.

### محترم شیخ الحدیث مولوي عبدالحکیم

مجاهدین باید دبریاوو په وخت کې دالله تعالی حمد او شکر ویلو تــه متوجــه شي ،تواضع او عاجزي غوره کړي.

### محترم مولوي عبدالکبیر:

دهوکړه لیک متن واقعاً ارزښتمن سند دی کوم چې به راتلــونکي کــې زمــوږ د هیواد او جغرافیې د سالمیت او ازادي ضامن دی.

### محترم مولوي امیرخان متقي:

زما په نظر کلک مقاومت، د امارت پخه او معقوله پالیسي او د امریکا مجبوریت د دې سبب شول چې بالاخره تړون لاسلیک شو.

### محترم شیخ الحدیث مولوي شهاب الدین دلاور

د امریکا په امضا د نوي اسلامی حکومت منل د کابل اداره رســما لغــوه کــړه او اسلامي امارت یې په نړیوال میدان کې خپل سیال او مقابل ومانه!!

### محترم حافظ انس حقاني :

نن چی د اشغال وجود له منځه ځي او امریکایان زموږ پاکه داعیه مني؛ دا زموږ د جهاد او قربانیو نتیجه ده.

### محترم مولوي عبدالسلام حنیفي:

موجودیت نیروهای خارجی در افغانستان باعث تشویش همسایگان وقـــدرت های منطقوی گردیده سبب مداخله آنها میشد، بناء این توافقنامه از اهمیـــت منطقوی وفرامنطقوی نیز دارا میباشد

### محترم مولوي عبدالمنان عمري:

د اسلامي امارت دمؤسس امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله شــل کاله وړاندې امریکایانو ته د لانجې د هواري په غــرض د یــوه دغســي تفــاهم سپارښتنه کړې وه.

### محترم ذبیح الله مجاهد

فرهنګي ملګرو په څه دول چې روان جهاد په نړیواله سطحه مــنعکس کــړ او د اسلامي امارت دواحد صف او دریځ په څلولو کې یې تلپاتی کــردار درلـــود اوس باید د تړون په ساتلو او مثبت ارزولو کې حیاتي رول ولوبوي.

### محترم الحاج خلیل الرحمن حقاني

مذاکراتي ټیم په ډیري میرانې، سیاسي بصیرت اودواحدې رهبری په چوکاټ کې له امریکایانو سره دافغان ولس دفتحې تاریخي سند لاسلیک کړ.



# څرک

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

شپاړسم کال، دریيمه، پرلپسې ۱۱٦مه ګڼه، دلو-حوت۱۳۹۹ل،
رجب المرجب۱۴۴۱هـ ق، مارچ۲۰۲۰م


## لړلیک




**امتیاز :**

**دا مـتیازخـاونـد :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیــر :** عبـید تنویر

**لـیکوال پـلاوی :** ډاکټر صا بر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغـانسـتـان : | ۳۵۰ افـغا نۍ |
| پـا کـسـتـان : | ۵۰۰ کـلـدارې |
| ا مـریـکـا : | ۷۰ ډا لـــره |
| ا روپـــا : | ۷۰ یـــو رو |
| یــوه ګـڼـه : | ۳۰ افغـــانۍ<br>٦۰ کـلـدارې |

**یادونه**

حـتمي نـه ده چې پـه څـرك كـې خــپرې شـوې مقالې داداري دپـالـیسي ترجماني وکـړي هـره لیکنه دلـیکوال خــپل نـظـر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

**پتې :**

*srak_111@yahoo.com*

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# فرهنګي غازیانو ته ولې نـــړۍ ګوته په غــاښ ده؟

الفتح عملیات د افغان ولس د روان برحق جهاد او مقدسې مبارزې د رنګ راوړلو او برخلیک ټاکونکو شیبو نوم اوکال وو، چې د الله تعالی په نصرت یې له غلیم څخه جهادي او سیاسي میدان وګاټه، هغوئ یې د غرور او خود خواهۍ له بامه راګوزار کړل او د افغانانو د ملي خپلواکۍ ګټلو برحقه اسلامي داعیه یې ورباندې تسلیم کړه.

په داسې حال کې چې د الفتح عملیاتو په جریان کې سنګر میشته اتلانو په مورچلونو او سنګرونو کې له خپل دښمنه ارام اخیستی و او په سیاسي ډګر کې د افغان ولس ویښو سیاسي استازو بیا د نړۍ له مغرور او مکار طاقت سره د اشغال دخاتمې په سر د مذاکراتو سخت پړاوونه ترسره کول.

د اسلامي امارت د سنګر او دفتر بریاوو ته انعکاس ورکول، ولس او نړیوال ترې خبرول او بالآخره د مورچل او سیاست په ډګرونو کې د میړنیو مجاهدینو لاس ځواکمنول یو ستر مسؤلیت و، چې لله الحمد د اسلامي امارت فرهنګي کمېسیون په خپل ټول وس او توان سره اوږه ورکړې وه او دغلیم دمجهزو تبلیغاتي ماشینونو زهر او پروپاګندې تس نس کول.

د فرهنګي چارو کمېسیون د هر ولایت جهادي خبرونه، دمجاهدینو د هرې غزا او سربښیندنې حماسې او جریان په ساعتونو څه چې په لحظو لحظو کې د هیواد دننه او بهر رساوه.

د فرهنګي سنګر د دغو مخلصانه هڅو نتیجه وه چې دامارت د سنګر او دفتر وحدت او هماهنګي یې په زیات درایت او تدبیر سره وځلوله او دښمن ته یې فرصت په لاس ورنکړ ترڅو د مجاهدینو او ولس اذهان مشوش او مختل کړي.

دکابل مشهورې ورځپاڼې (شبکه اطلاع رساني) په خپل یوه تحلیل کې ویلي دطالبانو مطبوعاتي نظم اوانسجام چې هم یې خپل پوځي بریاوي او هم سیاسي لاسته راوړنې په څومره سرعت او ځیرکتیا منعکسي او پرمخ یووړې د کابل رژیم تبلیغاتي ذرائع، ویندویان او چارواکي یې له لوی خجالت او سربدالی سره مخ کړي وو.

دپاکستان مشهور محلل رحیم الله یوسفزی وایی دطالبانو مطبوعاتي افراد خپلو افکارو ته سخت ژمن او وفادار دي دوئ دخپلو کمو ذرائعو په مټ خپل جنګیالي او هم خپل ولس په اعتماد کې ساتلي او تر ټولو اهمه خبره داده چې طالب سیاسیونو او پوځي چارواکو ترمنځ چې کومه د باور فضا شتون لري او څوک یې ترمنځ درزونه نشي اچولي په دې برخه کې هم د طالبانو فرهنګي غړي او لیکوالان موثر رول لري.

## د اسلامي امارت د سياسي دفتر مرستيال او د مذاکراتي تيم مشر محترم

# الحاج ملا شير محمد عباس ستانکزی:

- امريکا له موږ سره د خپل شکست او زموږ د بېچاره ملت او اتلو مجاهدينو د بري او ميړانې معاهده امضا کړه.
- د کابل اداره لاسپوڅي اداره پر خلکو باندې تپل شوی رژيم ده کله چې امريکايي ځواکونه افغانستان ته راغلل، دا اداره يې ځان سره راوړه دا رژيم هيڅ مشروعيت نه لري.
- د ماسکو په کنفرانس کې زما تور پټکی او تور کالي وو. شمله مې ددې په خاطر پر سر باندې واچوله چې يو خو د بيرغ ځای ونيسي او بل دا چې د افغانانو ويار او افتخار همدا لنګوټه او شمله ده!!

**پوښتنه: د اسلامي امارت د سياسي دفتر مرستيال او د مذاکراتي تيم مشر محترم الحاج ملا محمد عباس ستانکزی صاحب، د کب په لسمه نېټه اسلامي امارت له امريکايانو سره د اشغال د خاتمې تاريخي تړون لاسليک کړ. تاسې د دې تړون په لاسليک او مذاکراتي پړاوونو کې کليدي رول درلود. د دې تړون د لاسليک په اړه که خپل تاثرات راسره شريک کړئ او وواياست چې دا تړون افغان مجاهد ولس ته په تاريخي لحاظ څومره مهم او ارزښتناک بلل کېدای شي؟**

ځواب: الحمد لله رب العالمين، والعاقبة للمتقين، والصلاة والسلام على أشرف الأنبياء والمرسلين، سيدنا ونبينا ومولانا محمد، وعلى آله وصحبه ومَن اهتدى بهَدْيه إلى يوم الدين. أما بعد:

وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّـهِ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ٦١))

صَدَقَ اللهُ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ.

د څرک مجلې درنو لوستونکو او د افغانستان ټول مسلمان مجاهد ولس ته، السلام عليکم ورحمته الله وبرکاته!

د کب يا حوت په لسمه (د ۲۰۲۰ز د فبرورۍ ۲۹ تمه) د افغانستان د مجاهد ملت په تاريخ کې يوه زرينه کارنامه رامنځته شوه. په دې ورځ اسلامي امارت د مجاهدينو او افغان ولس په نمايندګۍ له هېواده د امريکايي زبرځواک او ناټو د ځواکونو د وتلو توافقنامه امضا کړه. په دې ورځ تر نږدې شل کاله جنګ، تر يو لک د زياتو مجاهدينو شهادت او په مجموع کې د تر اتو لکو د زياتو افغانانو تر وژل کېدو او معيوبېدو وروسته امريکا او ناټو خپل شکست ومانه، او له افغانستانه د وتلو لپاره يې ځان ته لاره جوړه کړه. دا يوه تاريخي ورځ ده. دا د مجاهدينو د بري ورځ ده.

د دې توافقنامې په اساس به امريکا او ناټو په څوارلسو مياشتو کې خپل ټول نظامي، استخباراتي، قراردادي، بحري، زميني، هوايي او نور هر ډول قوتونه باسي، او يوازې به د سفارت ډيپلوماټان چې د بهرنيو چارو وزارت مامورين به وي دلته د پاتې کېدو اجازه لري. افغانستان به څوارلس مياشتې وروسته ان شاءالله يو سرلوړی، ازاد او مستقل هېواد وي. دا توافقنامه د افغانستان په تاريخ کې ساری نه لري. د افغانستان په تاريخ کې ډېرې معاهدې شوې، خو ممکن دا يوازينۍ هغه معاهده وي چې سل فيصده د افغانانو په ګټه ده.

دا معاهده تر اتلس مياشتو مذاکراتو او تقريبا يوولسو پړاوونو وروسته جوړه شوه. په هره جمله او هر لغت يې موږ شپې او ورځې غور کړی، له مقابل جانب سره مو دلايل پرې ويلي او مناقشې مو ورسره پرې کړې څو بل ډول تعبير ترې ونشي، يا په راتلونکې کې داسې مشکل ترې جوړ نشي چې هغه، خدای ناخواسته، د مجاهدينو، شهيدانو، کونډو د اروزګانو او د افغانستان د مجاهد ولس په زيان تمام شي.

زموږ په ټيم کې اتلس ملګري وو، چې ښه ورزيده او تجربه کاره مجاهدين، علماء کرام او ليکوالان پکې وو، او

مشـري يـې زمـا پـر غـاړه وه. د امریکـايي ټـيم مشـري زلمـي خليلزاد کوله، او د نظـامي جنرالانـو او حقـوقي څـارنوالانو پـه شمول تقريبا د امریکا د هرې ادارې نمايندګان ورسره وو.

دا توافقنامه ان شاءالله د ټولو په ګټه ده، زموږ د ملي ګټو په اساس جوړه شـوې ده. د توافقنـامې ترڅنګ دوې ضـميمې دي چـې هغـه د دې هـوکړې شـرحه ده. د سـاري پـه ډول د هوکړې په مسود کې ويل شوي چې پـه څوارلسـو مياشـتو کې به ټول امريکايان له افغانستانه وځي. د توافقنـامې پـه ضـميمه کې دا تشريح شوې چې امريکايان به څنګه او لومړی لـه کومـو اډو وځي، هوايي وتل به يـې څنګـه وي، زمينـي بـه يـې څنګـه وي، حمايه به څنګه وي، بريد به پرې کيږي او که نه... همدې ته ورته مسايل پکې شرحه شوي دي.

د امریکا د بهرنيو چارو وزير په يوه خبري کنفـرانس کې ويلي و چې دوه محرم اسناد هـم شـته. هغـه د ده پـه اصـطلاح محرم اسناد همـدا ضـميمې دي، چې د توافقنـامې شـرحه ده. داسې کوم پټ شی له امریکا سره نه دی امضا شـوی چـې هغـه دې زموږ له مجاهدينو او خلکو پټ وي.

په دې توافقنامـه کې دا تعهـد هـم شـوی چـې د اسـلامي امارت او په راتلـونکې کې د ټول- شـموله اسـلامي حکومـت ذمه واري به وي چې چا تـه بـه د امریکـا، غـرب او ملګـرو پـر ضد يې د افغانستان د خـاورې د اسـتعمال اجـازه نـه ورکـوي. البته که څوک په افغانسـتان کې اوسـي، د مهـاجر يـا مېلمـه پـه حيث اوسېدلای شي، د افغانسـتان د اسـلامي اساسـي قـانون مطابق به په افغانستان کې سوله ييز ژوند کوي. خو کـه څـوک د افغانستان له خاورې نورو ته تهديد جـوړوي، مـوږ بـه اجـازه نه ورکوو. دا د توافقنامې شرط دی.

د توافقنامې بله موضـوع بـين الافغـاني مـذاکرات دي. دا خبرې به پخپله د افغانانو ترمنځ وي. موږ امريکايـانو تـه ويلـي چې مداخلـه بـه نـه پکـې کـوي. د دې مـذاکراتو د پيـل نېټـه د حوت شلمه (د مارچ لسمه) ټاکل شوې وه او تر پيـل وړانـدې به يې زموږ پنځه زره اسيران خوشـي کېـدل. پـه بـين الافغـاني مذاکراتو کې د ګډون لپـاره د اسـلامي امـارت ټـيم تيـار ټاکـل شوی او موجود دی.

له هغې خوا به د افغانستان د مختلفـو قشـرونو، اقوامـو، پرګنو او خصوصا د سياسي ډلو نماينده ګـان پکـې وي. کېـدای شي د کابل د غلامې ادارې، چې اوس هم د امريکايانو تر تاثير لاندې ده، يو کس اشتراک پکې وکـړي — خـو د حکومـت پـه حيث نه، د يوه طرف په حيث، ځکه مـوږ دا اداره پـه رسـميت نه پېژنو او نورو افغانانو ته احترام لرو. هغه افغانـان چې اوس له دې ادارې سره پـه څنګ کې ولاړ دي او ولسـي ملاتـړ هـم لري، له هغوی سره به موږ خبرې کوو. پر هغـو موضـوعاتو بـه ورسره غږيږو چې زموږ په منځ کې لاينحله دي. او ان شـاءالله کوښښ به وکړو چې يوه توافق تـه سـره ورسـيږو او يـو داسـې نظام او حکومت سره جوړ کړو چې ټولو افغانانو تـه د منلـو وړ وي.

**پوښتنه: ستاسې په نظر، امریکا له خپلې ټولې نړيوالې خودخواهۍ او يکه تازۍ سره سره ولې بـالأخره لـه اسـلامي امـارت سـره سـولې او لـه افغانسـتان د وتلـو د توافقنـامې لاسليک ته چمتو شوه. ايا نور له جګړې ستړي شوي وو، او که اقتصادي او نور دلايل وو؟**

ځواب: دا حقيقت دی چې امریکا د نړۍ يـو زبرځـواک دی او پـر ټولـه نـړۍ بانـدې سياسـي، نظـامي او اقتصـادي اثـر ورسوخ لري. د دې ترڅنګ د ناټو د هغه ستر نظامي قـوت پـه راس کې هم امریکا ده چې د هر هېواد پـر ضـد چـې وغـواړي مسـنجم وي، يوځـای يـې پـه مقابـل کې دريـږي او بريدونـه ورباندې کوي.

په ۲۰۰۱ ز کال کې جـورج ډبليـو بـوش پـه ډېـر غـرور او تکبـر پـر افغانسـتان بانـدې يرغـل وکـړ. د اسـلامي امـارت وړانديزونـه يـې ونـه منل. اسـلامي امـارت ورتـه ويلـي چـې د سـپتمبر د ۱۱ مـې د بريـد داسـې ثبـوت دې راکـړل شـي چـې وښيي دا بريد د افغانستان لـه خـاورې شـوی، مـوږ بـه د خپـل هېواد د قوانينو مطابق د دې کار ترسره کوونکو ته جزا ورکړو. خو تاسې وليدل چې امريکـا او پـه راس کې يـې بـوش دې تـه غاړه کېښنوده، دا يې د ځان تـوهين وبالـه چې څنګـه اسـلامي امارت ته داسې اسناد يا بـل ثبـوت ورکـړي چې وښـيي واقعـه داسې شـوې ده — دوی ونشـوه کـړای، لـه دومـره ځـواک سـره سره نه امریکا او نه ناټو معلومه کړای شوه چې دا بريد چا کړی و، کوم کس چې دوی مجـرم بالـه پـر هغـه بانـدې هـم رسـمي اسناد نه لري.

بهر حال، دوی پـه ډېـر غـرور پـر افغانسـتان بانـدې بريـد وکړ. د اسلامي امارت تر کابو يوې مياشتې مقاومـت وروسـته د داخلي اجنټانو، غلامانو، سياسي احزابو، چې ټول ملت تـه معلـوم دي او اوس هـم د امریکـا د بيـرغ تـر سـيوري لانـدې د

دوی په ساختګي حکومت یا غلامه اداره کې شامل دي، په مټ افغانستان ته راداخل شول او اشغال یې کړ.

په مقابل کې یې، لله الحمد، د افغانستان د اسلامي امارت په رهبرۍ او د ټول ملت په ملاتړ جهاد پیل شو او لا هم ادامه لري.

لـه ۲۰۰۱ز راهیسې تقریبا نـولس کاله تیریـږي. دا د امریکا په تاریخ کې تر ټولو اوږد جنګ دی چې متحده ایالات یې له خپلې خاورې بهر کوي. په دې جګړه کې امریکا ډېر نظامي، سیاسي او اقتصادي زیانونه ولیدل. هر کال بـه یې د دې جنګ لپاره سلګونه میلیونه ډالـره بودیجه تعینولـه. د دوی په قول، د دې جنګ مصارف اوس تر یو ټریلیون ډالـرو هـم اوښتي دي. دا یوه اقتصادي ضربه وه چې دوی وخوړله.

د دې ترڅنګ دوی تلفات هم لیدلي دي. اګر کـه د دوی رسمي ارقام ښیي چې په افغانستان کې یې تقریبا ۲۵۰۰ عسکر وژل شوي دي، خو د دوی نظامي جنرالان چې بـه دلته د مېز سر تـه راتلل ویل بـه یې چې پر دوی بـه پـه سراسر افغانستان کې د مجاهدینو لخوا د ورځې اوسطا ۱۲۰ – ۱۵۰ بریدونه کېدل.

که وکتل شي، نو دا پر امریکایانو او د ناټو پر قواوو باندې د ورځې یوازې ۱۵۰ بریدونه کیږي. که ټول تلفات ونـه لري، نیم خو به یې لري. که نیم یې ونه لري، د هغـه نیم، نیم خو به یې لري. په دې حساب بیا هم د ورځې لـه ۳۰ تـر ۳۵– ۴۰ عسکر مړه دي. خو امریکا دا پټوي او اصلي ارقام نـړۍ تـه نه ښکاره کوي.

دوی چې د تلفاتو کوم ارقام عام بیانوي، اصلي ارقام تـر دې څـو چنـده زیـات دي. د معیـوب شـویو، ځـانوژونکو او د ذهني توازن بایلونکو عسکرو ارقام خو به یې تر وتلـو وروسته ان شاءالله په ډاګه شي.

دا هغه تلفات دي چې دول دلته ولیدل او د دوی ټول غرور یې له خاورو سره ورخاورې کړ.

مخکې فکر کېده چې امریکا یـو داسې نړیـوال قـوت دی چې ماتول یې ناممکن دي. خو اوس ټولې دنیا ته ښکاره شـوه چې دا نړیوال قوت په افغانستان کې ډېرو بېچاره او ملنګانو تـه چې له کلاشینکوف او راکټ پرته یې بل څه په لاس کې نـه درلودل په ګونډو شو او ماتې یې ومنله. دې ته په کتلـو نړیوالـو هم د امریکا پر وړاندې د غبرګ اوچتولـو او مبارزې جرأت پیدا کړ. تاسې ګورئ چې د نړۍ په مختلفو هېوادونو کې د امریکا پر وړاندې خلک پورته شوي دي.

امریکـا لـه سیاسـي، اقتصـادي او نظـامي لحاظـه پـه افغانستان کې ماتې وخوړه او ستړې شـوه. د خپـل شکست پټولو په خاطر یې آن له ۲۰۰۸ز کال راهیسې هڅې پیل کړې وې چې له سیاسي اړخه ځان ته د وتلو لار جوړه کړي.

دوی مجبـور دي چـې د معاهـدې پـه اسـاس بـه لـه افغانستانه وځي. دا چې دوی نورې خبرې کوي او غواړي دنیا ته وښیي چې موږ پخپله افغانستان تـه راغلي یـو او پخپلـه بـه ځو – بلکل دغسې نه ده. حقیقت ټولې دنیا ته معلوم دی چې امریکا ماته شوه. دا ټولې نړۍ ته معلومه ده چې امریکا له مـوږ سره د خپل شکسـت او زمـوږ د بېچـاره ملـت او مجاهـدینو د بري معاهده امضا کړې ده.

لله الحمد، د نولس کلـن جهـاد نتیجه نـن ټـول ګـورو: د دوی هغه غـرور او تکبـر لـه کـوم سره یـې چې پـر افغانسـتان باندې نږدې دوې لسیزې وړاندې یرغل وکـړ، لـه خـاورو سـره خاورې شو. دا د دوی خامپختګي وه چې په افغانستان کې یـې د روسانو او انګرېزانو له شکسته درس وانخیست.

دوی چې څـه درلـودل ټـول یـې استعمال کـړل. خـو لله الحمد د خدای جل جلالـه پـه رحـم او ملاتـړ یـې شـرموونکې ماتې وخوړله.

**پوښتنه: ځینې خلک اندېښنه لري چې ښایي د اسلامي امارت په لیکـو کې کـوم څـوک د توافقنـامې د اخـلال هڅـه وکړي. دا وېره څومره پرځای ده؟**

ځـواب: د افغانسـتان اسـلامي امـارت د یـوه اسـلامي جهت په حیث دې توافقنـامې تـه متعهـد دی او دا خپلـه دیني وجیبه ګڼي. هغـه افواهـات چـې زمـوږ دښـمنان او خصوصـا داخلي منافقین یې چې د سولې د فرصـت لـه منځـه وړلـو تـه لمـن وهـي خپـروي چې ممکـن اسـلامي امـارت دې ژمنـو تـه وفادار پاتې نشي، بېځایه دي. موږ چې کـوم تعهـد کـړی، هغـه ته به وفادار پاتې کیږو.

تاسې وینئ چې نږدې یوه میاشت پوره کېدونکې ده، موږ پر خپلو ژمنو ولاړ یو. برعکس د دوی لخوا تخلف شـوی دی: ټاکل شوې وه چې د مـارچ پـه لسـمه بـین الافغـاني مـذاکرات پیـل او تـر هغـه مخکې پنځـه زره بنـدیان خوشـي شـي. خـو امریکایانو وفا ونکړه. ممکن د دوی په خپل منځ کې له غلامې



اداري سره جنجال وي. دا د دوی لخوا د تعهداتو خلاف ورزي ده.

زمونږ لخوا هیڅ ستونزه نشته. بین الافغاني مذاکراتو ته زمونږ ټیم تیار دی. الحمدلله په اسلامي امارت کې نه ډلې ټپلې شته او نه کومه بله ستونزه — ټول یو امارت دی، د یوه امیر المؤمنین تر قوماندې لاندې یې افراد له بدخشانه تر هراته، له مزاره تر خوسته، په ټول هېواد کې د تیارسۍ په حالت کې ولاړ دي، هر ډول امر چې ورته وکړي، هغسې به کیږي. اوسمهال دا توافقنامه زمونږ لخوا تایید شوې او تر اخیره به ورته متعهد یو. هیڅوک دې زمونږ لخوا د دې توافقنامې د ماتېدو اندېښنه نه لري، یا دا اندېښنه چې د امارت په منځ کې به داسې څوک وي چې دا نه مني. دلته هیڅ ډله وټپله نشته، هغه که سیاسي دفتر دی، که اقتصادي دی او که بل څه.

**پوښتنه: اسلامي امارت په ډېر جدیت سره له کابل رژیم سره د مخامخ خبرو تردید کوي. دا چې له امریکایانو سره اصلي ستونزه، چې اشغال و، د الله تعالی په فضل سره یوه لوري ته شوه، اوس د خلکو په ذهن کې دا پوښتنه ده چې هغه کوم مقنع دلایل دي چې له مخې یې اسلامي امارت له کابل اداري سره خبرو ته نه حاضرېږي؟**

ځواب: د کابل فعلي اداره لاسپوڅي ده. مخکې موجوده نه وه. کله چې امریکایي ځواکونه افغانستان ته راغلل، دا اداره یې جوړه کړه. دا د افغانستان پر خلکو باندې یوه تپل شوې اداره ده او کوم رسمي حیثیت نه لري.

او بل د هغه برعکس لکه څنګه چې یې ادعا کیږي، دا اداره د خلکو د رایې او د خلکو د انتخاباتو په اساس هم منځته نه ده راغلې. تاسو ته معلومه ده چې تر دې مخکې د امریکا د بهرنیو چارو د وزیر جان کیري په وساطت سره جوړه شوه. د هغې دورې تر تېرېدو وروسته اوس بیا وینو چې په خپل منځ کې نه سره جوړیږي، دوه حکومتونه یې جوړ کړي او "رییس جمهوران" یې په یوه ځای کې سره ناست دي. دا پخپله ښیي چې دا اداره ناقانونه ده او چا رایه هم نه ده ورکړې. تاسې ولیدل چې د افغانستان غیور او مجاهد ملت په انتخاباتو کې ګډون ونکړ او له یو څو محدود شمېر لاسپوڅو او د دوی له معاشخورو پرته بل څوک رایې ورکولو ته حاضر نه شول. دا هیڅ قانوني حیثیت نه لري. کېناستل ورسره هم هیڅ ګټه نه کوي ځکه د دوی د هیچا نمایندګي نه کوي. دوی سره کېناستل د وخت د ضیاع په معنا دي.

له اوسنۍ بېحیثیته، غلامې اداري سره چې د هیچا نمایندګي نشي کولای کېناستل د وخت خرابول دي. خو په دې خاطر چې مذاکرات کامیاب شي او په راتلونکې کې څوک ګیله ونکړي، ممکن د دوی یو کس (هغه هم د حکومت په نمایندګي نه، بلکې د یوه جانب یا طرف په حیث) په بین الافغاني مذاکراتو کې ګډون وکړي. خو تاسو وینئ چې دوی تر اوسه مذاکراتي ټیم هم نه دی برابر کړی، او زه فکر کوم چې دا به دوی ته ډېره لویه ستونزه وي. مونږ د کابل له اداري سره ځکه خبرې نه کوو چې د چا نمایندګي نشي کولای، د امریکایانو له راتګ سره منځته راغلې او د هغوی له تګ سره به ببرته ځي.

**پوښتنه: ستاسې په اند، له امریکا سره توافقنامه نورې نړۍ ته څومره مهمه وه؟ او آیا له اسلامي امارت سره د نړیوالو تماسونه او رابطې زیاتې او تودې شوې دي؟**

ځواب: له امریکا سره امضا شوې توافقنامه چې څومره مونږ ته اهمیت لري په همغه اندازه ګاونډیانو او د سیمې نورو هېوادونو ته هم مهمه ده. ځکه زمونږ په هېواد کې د امریکایانو شتون ګاونډیان نشي زغملای. په افغانستان کې د امریکا شتون نه پاکستان، ایران او نه هم روسیې او اچین ته د زغم وړ دی. په دې توافقنامه ګاونډیان او د سیمې هېوادونه هم زیات خوشحاله دي. د هغوی وېره دا وه چې که امریکا په افغانستان کې پاتې شي، دا خاوره به د دوی پر خلاف کاروي. او دا هغه څه دي چې مونږ یې هم نه غواړو چې زمونږ له خاورې دې څوک، که څه هم امریکا وي، د بل چا پر ضد کار واخلي. پر دې توافقنامه باندې زمونږ ګاونډیان او د سیمې هېوادونه خوښ دي، هرکلی یې کړی او خوشبین دي — خو که توافقنامه په همدې شکل چې جوړه شوې مخته ولاړه شي.



او بل د روابطو په اړه باید ووایم چې د منځنۍ اسیا له هېوادونو ازبکستان، تاجکستان، قرغیزستان، قزاقستان او دارنګه له ایران، پاکستان، چین روسیې او د منځني ختیځ تر هېوادونو پورې، له دوی سره د اسلامي امارت اړیکې دوستانه دي. دوی ته مو په هره برخه کې د اسلامي امارت د پالیسۍ په اړه وضاحتونه ورکړي او ورته تشریح کړې مو ده. دوی موږ قانع کړي چې په افغانستان کې د اسلامي امارت یا حکومت راتګ د دوی ټولو په ګټه دی. له همدې امله موږ په منطقه کې یو طرف ملاتړ لرو او دا خلک زموږ قوي ملاتړ کوي. بلکې د روسانو او امریکایانو د اشغال په مقابل کې هم دا خلک له موږ سره ولاړ وو. تاسو به لیدلي وي چې روسانو، چینایانو او ګاونډیو هېوادونو د اشغال د خاتمې په اړه زموږ دریځ تایید کړی دی.

**پوښتنه: تر تړون وروسته تاسې او د اسلامي امارت سیاسي مرستیال محترم ملا عبدالغني برادر اخند د امریکا د بهرنیو چارو له وزیر مایک پامپیو سره ملاقات وکړ. د تړون په اړه د پامپیو تاثرات څه وو او په څه مو بحث وکړ؟**

ځواب: د توافقنامې تر امضا وروسته ملاقات د پامپیو په غوښتنه و. د ده غوښتنه وه چې باید خصوصي ملاقات وکړو. په دې لیدنه کې زه او ملا برادر اخند وو.

پامپیو لومړی د توافقنامې په اړه خپل تاثرات څرګند کړل. خوشحاله او له دې توافقنامې راضي وو او ویل یې چې دواړې خواوې باید دې هوکړې ته ژمن پاتې شي، د توافقنامې هر بند په صحیح ډول اجرا شي، موږ له افغانستانه د خپلو قواوو ایستلو ته ژمن یو، په افغانستان کې دې داسې یو حکومت راشي چې اکثریت افغانانو ته د منلو وړ وي، موږ به هغه حکومت ملاتړ کوو، په اقتصادي لحاظ یې هم ملاتړ کوو او په راتلونکې کې به د افغانستان په بیارغونه کې فعاله ونډه واخلو.

موږ ورته وویل چې موضوع په تاسې پورې اړه لري. موږ چې توافقنامه امضا کړه، ورته ژمن یو. دا توافقنامه موږ له قوي دریځه امضا کړې ده. په افغانستان کې ستاسې د جګړې شل کاله تیریږي. په سیمه کې داسې هېوادونه هم شته چې نه غواړي تاسې په دې ډول له افغانستانه ووځئ بلکې غواړي تاسې د پخواني شوروي اتحاد په څېر په پنځلس- شل ټوټو ووېشل شئ او بیا ووځئ. خو موږ نه غواړو چې خپل هېواد مو د زبرځواکونو د جنګ میدان شي. له خپل ملکه سوریه نه جوړوو ځکه زموږ د ملک په ورانۍ کې زموږ خلک وژل کیږي او موږ نه غواړو چې خلک مو ووژل شي. سولې ته مو ترجیح ورکړه او له قوي دریځه مو تاسې سره سوله وکړه. موږ ان شاء الله دې توافقنامې ته ژمن یو، او د دې مطابق به کوښښ کوو چې ستاسې قواوې له افغانستانه ووځي او په افغانستان کې یو داسې اسلامي او شرعي نظام رامنځته راشي چې ټولو افغانانو ته د منلو وړ وي، او په راتلونکې کې به موږ یو مستقل او ازاد افغانستان ولرو.

همدارنګه مو د سیمې له خطراتو او مشکلاتو خبر کړ. د امریکا د خطشاتو په اړه چې درلودل یې چې د افغانستان خاوره بېرته د دوی پر خلاف استعمال نشي، یا په راتلونکې کې نور قوتونه افغانستان ته رانشي او د امریکا مفادات په خطر کې ونه ولویږي اطمنان مو ورکړ. وروسته یې وعده وکړه چې زه یو ساعت وروسته له ولسمشر ډونلډ ټرمپ سره په ټلفون خبرې کوم او ستاسې ټولې خبرې وررسوم.

هماغه و چې یو ساعت وروسته ده له ټرمپ سره خبرې کړې وې. ټرمپ د شپې له دې توافقنامې خپل ملاتړ ښکاره کړ او بیا یې وویل چې زه به د اسلامي امارت هیئت واشنګټن ته رادعوت کړم.

ان شاءالله، امید لرو چې دا توافقنامه په ښه صورت مخته ولاړه شي.

**پوښتنه: ستانکزی صاحب، پوښتنې خو ډیرې دي. که د څرک د لوستونکو تنده په دې ماته کړئ چې له امریکایانو سره د دومره اوږدو مذاکراتو په اوږدو کې ستاسې لپاره خوږه او ترخه خاطره څه وه؟**

ځواب: د امریکا په څېر له یوه ستر قدرت سره چې تقریبا نیمه نړۍ ورسره ولاړه ده د مېز پر سر مناقشه کول، دلایل او چنې وهل اسانه کار نه دی. ډېر سخت پړاوونه وو او مشکلات پکې وو. یو نیم کال مو له دوی سره مشکلات تېر کړل. خو لله الحمد د اسلامي امارت هئیت چې په راس کې یې زه وم له دې کامیاب راووت، او ان شاءالله په دې توافقنامه کې موږ هغه الفاظ او نقاط پرځای کړي چې زموږ د ملت او خلکو خیر به پکې وي.

هره لحظه، هره دقیقه او هره ورځ د مېز پر سر مناقشه وه. کله به سره خوابدي شوو او وبه وتو. کله به بیا د منځګړي په توسط بېرته پر مېز کېناستو او خبرې به مو پیل کړې.

ډېرې هسکې او ژورې یې درلودې، چې په راتلونکې کې به په خاطراتو کې هم راشي. زه اوس په تفصیل سره ټولې خبرې نشم کولای. ښه او خوږه خاطره دا ده:

د ۲۰۱۹ز په سپتمبر کې موږ دا توافقنامه خلاصه کړه او هوکړه مو وکړه چې نور به یې د امضا لپاره برابروو. کله چې ما او خلیلزاد ابتدایي امضاء پرې کوله، په اختتامیه خبرو کې ما د خوشحالۍ اظهار وکړ او دا مې تاریخي ویاړ وباله. زما ملګرو د نعره تکبیر شعار ورکړ او خپله خوشحالي یې څرګنده کړه. دا زموږ لپاره د نهایي خوشحالۍ ځای و — دومره خوشحالي وه لکه چې څومره چې د توافقنامې د امضا په ورځ وه. اما مقابل جانب داسې نه کول ځکه دوی خو د خپلو قواوو د خروج او ماتې امضا کوله. دوی ډېره خوشحالي نه ښکاروله — قانوناً هم باید د دوی دریځ دغسې وای. دا زموږ لپاره د خوشحالۍ خاطره وه.

او ترخه خاطره دا وه چې یوه ورځ موږ پر یوه خاصه موضوع باندې مناقشه کوله، خلیلزاد په ډېره تونديۍ وویل چې موږ غواړو له افغانستانه خپلې قواوې نور وباسو، چې په هر ډول وي، ځکه موږ نور د افغانانو له وژلو ستړي شوي یو. موږ ته یې دا یاد کړل چې دوی څومره افغانان د طالب، مجاهد او نورو په نومونه بمبار او شهیدان کړي دي. دا زما لپاره تر ټولو ترخه خاطره وه چې په ټول ژوند کې به مې له یاده ونه وځي.

**پوښتنه: د اخیرې پوښتنې په ډول که راته ووایاست چې د ۲۰۱۸ز په نومبر میاشت کې د بین الافغاني کنفرانس په څنډه کې تاسې خپله شمله پر سر راماته او غبرګه کړه. دې تصویر مو په خلکو کې ډېرې ولولې راوپارولې. دا کار مو تصادف و او که مو له وړاندې همداسې تصمیم نیولی و؟**

ځواب: د ۲۰۱۸ز کال په نومبر میاشت کې په مسکو کې له نړیوالو سره تر ډېرو سیاسي هلو ځلو وروسته د مسکو فارمټ غونډه جوړه شوه. د دوولسو هېوادونو د بهرنیو چارو وزیران یا مرستیال وزیران رادعوت شوي وو او اسلامي امارت ته هم بلنه ورکړل شوې وه. دا اولین مجلس و چې اسلامي امارت یې په رسمي ډول دعوت کړ. هغه وخت زه د اسلامي امارت د سیاسي دفتر مسؤل وم. دا موضوع مو له خپل مشرتابه سره شریکه کړه او د مشرتابه په اجازه مو په دې غونډه کې ګډون وکړ.

د روسیې د بهرنیو چارو د وزیر تر افتتاحیه وینا وروسته موږ وینا وکړه، او د راتلونکي حکومت، سولې او مذاکراتو، د ښځو د حقوقو او داسې نورو مسایلو او راتلونکي افغانستان په اړه مو د اسلامي امارت هراړخیزه پالیسي ګډونوالو ته اظهار کړه.

اصول دا دي کله چې په نړیواله سطحه کوم کنفرانس جوړیږي هلته د هر هېواد بیرغ ولاړ وي، د بهرنیو چارو وزیر یې څنګ ته دریږي او یادګاري عکس اخلي.

د روسیې د بهرنیو چارو وزیر له ما هم غوښتنه وکړه چې زه هم په عکس کې ورسره ودرېږم. ما چې هلته وکتل د دوولسو هېوادونو بیرغونه وو خو د اسلامي امارت بیرغ نه و. ما ته د اخبره د ا خبره دمنلو نه وه. بل څه نه و، د بیرغ پرځای مې د خپلې تورې لنګوټې شمله چې معمولا هغه زمونږ میړنی مجاهدین او طالبان یې په لوی اکثریت په سرکوي پر سر راکش کړه او دا مې وښوده چې دا زمونږ دغیرت، حریت او تاریخي معرکي نښه او په همدې مجلس کې د بیرغ نمونه ده

تاسې ته معلومه ده چې د مکې معظمې په فتحه کې د مسلمانانو بیرغ تور و، د کعبې غلاف هم تور دی، او همداسې په ډېرو مواردو کې تور رنګ د مسلمانانو د نښان په توګه کاربدلی دی.

هغه وخت زما تور پټکی او تور کالي وو. شمله مې د دې په خاطر پر سر باندې واچوله چې یو خو د بیرغ ځای ونیسي او بل دا چې د افغانانو ویاړ او افتخار همدا لنګوټه او شمله ده — کله چې یو تاریخي کار کیږي نو خلک شمله پورته کوي او پر سر یې را اړوي. دا د افغانانو تاریخي ویاړ او لاسته راوړنه وه، د اسلامي امارت په رسمیت پېژندل و — په همدې خاطر مې په هغه ورځ شمله پر سر واچوله.




حبیب مجاهد

# له تړون وروسته د پیوستون مرحله

د کب د میاشتې په لسمه نیټه چې د فبروري له ۲۹ مې سره برابره وه، په قطر کې د اسلامي امارت استازو له امریکایي اړخ سره د اشغال د خاتمې تړون امضاء کړ. د دې تړون د سیاسي او تاریخي اهمیت په اړه ډیر څه لیکل شوي او لیکل کیږي. دلته غواړو د دې تړون په یو بل مثبت اړخ او گټوره پایله رڼا واچوو چې د تړون له امضاء وروسته یې موږ هره ورځ شاهدان یو.

د اشغال د خاتمې د تړون له امضاء وروسته اگر که د کابل گوډاگي چارواکي لا هم هڅه کوي د دې تړون د اجراء په لاره کې خنډونه ایجاد کړي. خو بل اړخ ته د رژیم په لیکو کې ولاړ عسکر او ټیټ پوړي چارواکي داسې فکر نه لري. د تړون امضاء د رژیم په صفوفو کې د اکثرو عسکرو په اذهانو مثبت اثر کړی دی. د هغوی افکار یې روښانه کړي دي او د اسلامي امارت حقانیت ورته د لمر په څیر واضح شوی دی.

له همدې امله خو موږ د تړون له امضاء وروسته درگرده اورو چې د رژیم عسکر په ډلو ډلو له مخالفت لاس اخلي، د اسلامي امارت د دعوت غږ ته لبیک وایي، د دښمن له صف څخه را جلا کیږي او خپلې وسلې مجاهدینو ته سپاري.

د بیلگې په توگه د مارچ میاشتې په پنځمه د غور په دولتیار کې دیرش تنه اربکیان مجاهدینو ته تسلیم شول. د مارچ په ۱۷ مه په بغلان کې شل تنه اربکیان او عسکر د دښمن له صف څخه رابیل شول. په ورپسې ورځ د لغمان ولایت مرکز مهترلام اړوند کرنج ابه سیمه کې نهه تنه اربکیانو خپله پوسته له ټولو وسائلو او تجهیزاتو سره مجاهدینو ته تسلیم کړه. په همدې ورځ د بغلان په پلخمري کې ۷ تنه نور عسکر هم تسلیم شول.

په مارچ په ۱۸ مه نیټه الاماره ویب پاڼې خبر ورکړ چې د بلخ ولایت، په خاص بلخ، چمتال، شولگر، او زارع ولسوالیو کې د کابل رژیم ۱۴ تنه عسکر، پولیس او اربکیان د اسلامي امارت د جلب او جذب کمیسیون د مسؤلینو په زیار او د حقائقو د درک په نتیجه کې له مزدوري اداري را جلا او مجاهدینو سره یو ځای شول. درې ورځې بعد په همدې بلخ کې د چمتال، کلدار، دولت اباد او خاص بلخ ولسوالیو مربوطاتو کې د کابل رژیم ۱۵عسکر او پولیس له مجاهدینو سره یو ځای شول.

د مارچ په ۲۱ مه نیټه د اسلامي امارتویاند خبر ورکړ چې د غور ولایت د شهرک ولسوالۍ اړوند د استوبه په سیمه کې یوتن اربکي قومندان (ناصر) له خپلو ۲۵ تنه ملگرو او ټولو وسلو اومهماتو سره دحقائقوپه درک کولو داسلامي امارت مجاهدینوته راغی او د دښمن له صف څخه یې ځان را جلا کړ. په همدې ورځ الاماره ویب پاڼې ولیکل چې د بغلان په مرکزي بغلان ولسوالۍ کې د دعوت او ارشاد کمیسیون د مسؤلینو په زیار او د سیمې د مجاهدینو په همکارۍ د مزدور رژیم ۲۸ عسکر، پولیس، اربکیان او نور له مجاهدینو سره یو ځای شوي دي.

د تسلیمیو لړۍ لا هم جریان لري او ځو ورځې وړاندې د لغمان په دولت شاه کې د ۱۲ تنو عسکرو او اربکیانو د تسلیمۍ راپور ورکړل شو. دا هغه ځو عمده او مهمې پیښې وې چې په مسلسل ډول د تیرو څو اونیو به جریان کې پیښې شوې دي، د دښمن له صف سره د پریکون او اسلامي امارت ته د راتګ مکمل تفصیل د دعوت و ارشاد کمیسیون په هغه میاشتي راپور کې کتلی شئ چې د هرې میاشتې په پای کې له الاماره ویب پاڼې څخه خپرېږي.

د دښمن له صف څخه د عسکرو، اربکیانو او نورو کارمندانو دا ډول ډله ییز راوتل او له اسلامي امارت سره پیوستون ثابتوي چې د کب د لسمې ترون د دښمن په لیکو کې د ولاړو کسانو اذهان تنویر کړي دي. هغوی پوه شوي چې امریکایان د انګریزانو او شورویانو په شان اشغالګر وو چې دوی یې د خپلو ګټو او دفاع لپاره استخدامول.

دوی په دې هم پوه شوي چې د اسلامي امارت مجاهدین د ولس واقعي استازي، د الله تعالی د لارې فداکار مبارزین او د هیواد او ولس ویاړلي مدافعین دي، چې په تاریخ کې به د غازي ایوب خان، اکبر خان، میر مسجدي خان او غازي محمد جانخان غونډې په ویاړلو القابو او نومونو یادیږي.

د دښمن په لیکو کې ولاړ عسکر په دې هم پوهیږي چې که دوی له مخالفت او د اشغالګرو له ملاتړ لاس وانخلي نو انجام به یې د شاشجاع، ببرک کارمل او هغوی کمونیستانو په شان وي چې د شورویانو لپاره له خپل ولس سره جنګیدل او تر اوسه پورې نه یوازې خپل ځان بلکې خپلو کورنیو ته هم پیغور دي.

دوی په دې هم پوهیږي چې د خیر مصلحت لاره دا ده چې د اشغالګرو تر وتلو وروسته افغانان په اسلامي او ملي مشترکاتو سره را ټول شي. له بې ځایه سرزورۍ او مخالفت لاس واخلي او ټول د په اتفاق سره د الله تعالی د دین په رسۍ لاسونه محکم کړي.

بالمقابل د افغانستان اسلامي امارت هم د دښمن په لیکو کې ولاړو کسانو ته همیشه خپل د خواخوږۍ پیغام رسولی دی. هغوی ته یې خپله د اخلاص سینه پراخه کړې او له تسلیمۍ وروسته د عفوې فرمان یې ورته اعلان کړی دی. په دې سره ټولو هغو کسانو ته چې پخوا د بیلابیلو عواملو له وجې د اشغالګرو په صف کې ولاړ وو یو دا زرین فرصت دی. چې د پیوستون له دې بهیر سره ملګري شي او د ګوډاګي رژیم له صفوفو سره پریکون وکړي.

موږ د کب د لسمې له ترون وروسته د عسکرو د پیوستون دغه سلسله په نیک فال نیسو او الله تعالی ته دعاء کوو چې ټولو لارورکو ته هدایت ورنصیب کړي. تر څو خپل دیني او افغاني اصالت ته راستانه شي. چې په دې سره به الله تعالی د راتلونکې ستونزې هم برطرفې کړي.



## یوې ښځې ته د شیخ ناصر الدین ناشنا ځواب!

یوې ښځې له شیخ ناصر الدین (رحمه الله) نه پوښتنه وکړه چې له واده نه وړاندې ډیره نیکه وم روژه به مې نیوله تهجد به مې کول، او دقرآن تلاوت به مې ډیر په مینه کاوه،

خو له واده نه وروسته په عبادت کې هغه خوند نه محسوسوم..

هغه ورته وویل: خاوند سره دې څنګه زندګي تیریږي؟ دخاوند څومره خیال ساتې؟

ښځې ورته وویل: شیخ! زه درنه د عباداتو دخوند تپوس کوم او ته رانه دخاوند تپوس کوې..

هغه ورته حدیث بیان کړ چې ښځه ترهغه مهاله دایمان خوند نه شي څکلای تر څو چې یې دخپل خاوند حق نه وي ادا کړی. (ولا تَجِدُ المرأة حلاوة الإيمان حتَّى تؤدِّي حقَّ زوجها)

صحيح الترغيب والترهيب ۱۹۳۹.

د اسلامي امارت د سترې محکمې رئيس او د رهبرې شورا غړی

# محترم شيخ الحديث مولوی عبدالحکيم :

## مجاهدين بايد د بريا وو په وخت کې دالله تعالى حمد او شکر ويلو ته متوجه شي، تواضع او عاجزي غوره کړي.

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذي مهد قواعد الدين بكتابه المحكم، وشيد معاقل العلم بخطابه وأحكم، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له شهادة تهدي إلى الطريق الأقوم، وأشهد أن محمدا عبده ورسوله المخصوص بجوامع الكلم وبدائع الحكم، وودائع العلم والحلم والكرم صلى الله عليه وآله وصحبه وسلم. أما بعد

اولا السلام عليكم ورحمة الله وبركاته!

ثانيا ۱ - دغه تاريخي تړون له شرعي لحاظه جائز دی او له سياسي لحاظه ګټه ور دی ځکه دغه مذاکرات داسلامي امارت او امريکا چې په نتيجه کې يې دغه تړون راغلی وروسته له هغه شروع شول چې داسلامي امارت مشرتابه شورى يې سياسي طرف او شرعي طرف دواړه وڅېړل شرعي ممانعت نه و، سياسي ګټه پکې وه نو يې شروع کړل چې نتيجه تاسو وليدله ګټوره شوه.

۲ - دغه تاريخي تړون چې داسلامي امارت او د امريکا متحده ايالاتو ترمنځ وشو ، دا د اسلامي امارت نه بلکې دټول افغان ملت او د اسلامي نړۍ لپاره يو تاريخي کاميابي ده ځکه امريکا په ټوله نړۍ کې او په نن عصر کې ديو سوپر طاقت په حيث پېژندل شوې ده ټول د ځان په وهم او ويره کې وو نو هغه سوپر طاقت د اسلامي امارت په ايماني طاقت دالله عزوجل په نصرت امريکا ته داسې ګذار ورکړ چې دې ته مجبوره شول چې له قيد او شرط څخه پرته له افغانستان څخه خپل فوځيان په کلي توګه وباسي او بل دې تړون ټول اسلامي امت ته دا بالمشاهده وښوده چې مسلمان که خپل پر ايماني جذبې استقامت وکړي آخر به يې کاميابي په نصيب شي لکه الله عزوجل فرمائی {وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ}[سورة آل عمران -۱۳۹] او بل دې تړون دنيا ته وښوده چې اسلامي سياست پر کفري سياست غالب دی خو په شرط د استقامت؛ نو هروخت چې مسلمانان پر خپل ديني عقيدې او اسلامي طريقې استقامت وکړي تنزل ونه کړي کاميابي به د دوی وي، تاريخونو په کتو سره هر وخت چې مسلمانانو تنزل کړی وي آخر يې کمزوري په نصيب شوې وي، لکه خلافت عثماني چې خراب شو اساسي وجه يې دا وه چې د فرانسې په مقابل کې يې تنزل وکړ، نو مسلمانانو ته لازمه ده چې هيڅ وخت ددښمن په مقابل کې تنزل ونه کړي، دغه تاريخي تړون افغانانو ته ټول هغه د جهاد اهداف ور په نصيب کړل چې قرآن کريم په صراحت بيان کړي دي خو په دې شرط چې اسلامي امارت او د افغانستان ټول مسلمان ولس پر خپلې ايماني جذبې استقامت وکړي او په هيڅ وخت کې د باطل په مقابل کې تنزل ونه کړي، اعتماد خاص د الله عزوجل پر نصرت وکړي. هغه اهداف چې الله عزوجل په قرآن کريم کې په صراحت بيان کړي دي يوڅو به يې د نمونې په طريقه بيان کړو'

(۱) دجهاد هدف دادی چې دکفر طريقې اوکفري اعمال ختم شي ، د اسلام طريقې او اسلامي اعمال جاري شي، د الله عزوجل پر ځمکه د الله عزوجل پر مخلوق د الله عزوجل دين او قانون جاري شي، الله تعالى فرمائي: وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ

فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ (٣٩) وَإِن تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ ۚ نِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ (٤٠) [الأنفال ] { وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ } أي: الطاعة، والعبادة لله وحده، لايعبد شيء دونه

(٢) هدف د الله عزوجل د دين د شعائرو او عبادت ګاهو ساتنه ده ،الله تعالى فرمائي: وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ۗ وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ (٤٠) [ الحج ] في القرطبي: أي لولا ما شرعه الله تعالى للأنبياء والمؤمنين من قتال الأعداء، لاستولى أهل الشرك وعطلوا ما بينته أرباب الديانات من مواضع العبادات، ولكنه دفع بأن أوجب القتال ليتفرغ أهل الدين للعبادة. فالجهاد أمر متقدم في الأمم، وبه صلحت الشرائع واجتمعت المتعبدات.

(١) هدف دفع د فساد د ځمكې ده ، ځكه چې پرمځكې ګناهونه او كفري اعمال كيږي دالله تعالى عذابونه نازليږي نو ځمكه فاسديږي اوخرابيږي قال الله تعالى: وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ (٢٥١)[البقرة] قال الإمام الرازي في تفسيره: اعلم أنه تعالى لما بين أن الفساد الواقع بجالوت وجنوده زال بما كان من طالوت وجنوده، وبما كان من داود من قتل جالوت بين عقيب ذلك جملة تشتمل كل تفصيل في هذا الباب، وهو أنه تعالى يدفع الناس بعضهم ببعض لكي لا تفسد الأرض، فقال:ولولا دفع الله الناس بعضهم ببعض لفسدت الأرض، انتهى ولما كان دفع الفساد عن الأرض من أهم أهداف الجهاد شرع الجهاد في مقابلة البغاة والخوارج إذ لا يختص الجهاد بقتال الكفار، كما في رد المحتار في أول باب البغاة.

(٤) هدف د انسانانو څخه امتحان اخستل دي.

(٥) هدف د الله عزوجل هدايت او د انسانانو اصلاح ده.

(٦) هدف دانسانانو رسېدل د الله عزوجل نعمتونو او داخليدل جنت ته دي، قال الله تعالى { فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ۚ ذَٰلِكَ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَ بَعْضَكُم بِبَعْضٍ ۗ وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ (٤)سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ (٥) وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ (٦) [ محمد ] قال ابن كثير في تفسير قوله تعالى { وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَ بَعْضَكُم بِبَعْضٍ آي ولكن شرع لكم الجهاد، وقتال الأعداء ليختبركم، وليبلو أخباركم، كما ذكر حكمته في شرعية الجهاد في سورتي آل عمران وبراءة في قوله تعالى أم حسبتم أن تدخلوا الجنة ولا يعلم الله الذين جاهدوا منكم ويعلم الصبرين }[آل عمران -١٦٢] وقال الله تعالى أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تُتْرَكُوا وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِن دُونِ اللَّهِ وَلَا رَسُولِهِ وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً ۚ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ (١٩) (براءة)

(٧) هدف د كفارو بيريدل او ذليله كول دي، قال الله تعالى { وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ ۚ وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ (٦٠)[ الأنفال)

(٨) هدف كفارو ته د مسلمانانو په لاس عذاب وركول دي (٩) هدف د مؤمنانو د زړنو تشفي كول دي،

قال الله تعالى: قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ (١٤) وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَىٰ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ (١٥) [التوبة] في التفسير الكبير: وذكر في ذلك القتال خمسة أنواع من الفوائد، كل واحد منها يعظم موقعه إذا انفرد فكيف بها إذا اجتمعت؟ فأولها: قوله: يعذبهم الله بأيديكم ... المراد من هذا التعذيب القتل تارة والأسر أخرى واغتنام الأموال ثالثا، فيدخل فيه كل ما ذكرناه... وثانيها: قوله تعالى: ويخزهم معناه: ما ينزل بهم من الذل والهوان حيث شاهدوا أنفسهم مقهورين في أيدي المؤمنين ذليلين مهينين. . . وثالثها: قوله تعالى: وينصركم عليهم والمعنى أنه لما حصل الخزي لهم بسبب كونهم مقهورين فقد حصل النصر للمسلمين بسبب كونهم قاهرين... ورابعها: قوله: وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ... وخامسها: قوله: وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ. ولقائل أن يقول: قوله: وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ معناه أنه يشفي من ألم الغيظ وهذا هوعين إذهاب الغيظ، فكان قوله: ويذهب غيظ قلوبهم تكرار. والجواب: أنه تعالى وعدهم بحصول هذا

الفتح فكانوا في زحمة الانتظار، كما قيل الانتظار الموت الأحمر، فشفي صدورهم من زحمة الانتظار، وعلى هذا الوجه يظهر الفرق بين قوله: وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ وبين قوله: وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ فهذه هي المنافع الخمسة التي ذكرها الله تعالى في هذا القتال

(١٠) هدف د منافقانو ظاهريدل دي ، قال الله تعالى: مَّا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ ۖ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۚ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ (١٧٩) (آل عمران)

(١١) هدف د ضعيفه اوکمزورو مسلمانانو خلاصیدل دي دکفارو د ظلم او بربریت څخه، قال الله تعالى: { وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا(٧٥)[النساء]

٣- دامریکایانو منل چې دافغانستان جګړه پوځي حل نه لري او هرڅه باید دخبرو او مذاکراتو له لاري حل شي او جګړې ته دپای ټکی کېښودل شي دا زما په نظر د ډېرو وجوهو په سبب دی:

١- دا جګړه دومره اوږده شوه چې د امریکا په تاریخ کې دوی دومره اوږده جګړه نه وه لیدلې

٢- د مجاهدینو او دافغانستان د مسلمان ولس اسلامي جذبې ته چې دوی وکوري هغه وخت په وخت زیاتیږي هیڅ تنزل نه کوي نو دوی ته معلومه شوه چې جګړه نشوګټلای.

٣-کومه فاسده اداره چې دوی د افغانستان پر ولس تپلې ده هغه دومره فاسده او کمزورې اداره چې هیڅ امید یې ددې نشته چې دا اداره دې کامیابه شي.

٤- اقتصاد یې وخت په وخت کمزوری کیږي مصارف یې ډېریږي

٥- پوځیان یې بې هدفه مري د هدف امید یې نشته

٦- ناکامي یې وخت په وخت تولې نړۍ ته معلومیږي په دې وېریږي که جګړه نوره هم اوږده شي کوم ملکونه چې دوی په خپله قبضه کې راوستلي دي هغه د دوی له قبضې او له واکه وځي

٤- مجاهدینو او مسلمانانو ته چې هروخت د الله عزوجل فتحه او کامیابي ور په نصیب شي دوی ته په کار ده چې د الله عزوجل تسبیح حمداو استغفار ته متوجه شي ځکه الله تعالى فرمائی [إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ (١) وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا (٢) فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا(٣)]في السير: بعث عمرو بن العاص رضي الله تعالى عنه معاوية بن حديج وافدا إلى عمر بن الخطاب رضي الله تعالى عنه بشيرا بفتح الاسكندرية فلما قدم على عمر أخبره بفتح الإسكندرية، فخر عمر ساجدا، وقال:الحمد لله (فتوح مصر والمغرب ص ١٠٥)

او بل په زړه کې دا عقیده ولري چې دغه فتحه د الله عزوجل په کومک او نصرت ده زموږ په زور او هوښیاري نه ده ځکه الله تعالى فرمائی(فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ . وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا. إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ(١٧)} [سورة الأنفال-١٧] او بل مجاهدینو ته اوس دا په کار ده چې جهاد تر هغه وخته جاري وساتي چې د جهاد اصلي هدف ته ورسیږي چې هغه د الله تعالى پرمخلوق د الله تعالى د دین راوستل او د کفارو د اعمالو او طریقو ختمول دي، یوازې د امریکایانو پر وتلو اکتفاء ونه کړي ځکه اصلي هدف دجهاد خو د الله تعالى دکلمې لوړوالی دی؛ نو تر کومه وخته چې دغه هدف ته نه یو رسیدلي جهاد به جاري وي په مخکې آیت مبارکه کې تیر شو. {وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ(٣٩)}

د منافقینو شبهوته نظر ونه کړي چې وایي امریکایان ووتل نو جهاد نور له چا سره کوئ ځکه دامریکایانو وتل خو هدف ته د رسیدو یوه لاره وه چې امریکایان ووځي نو نیمه لاره طی شوه نیمه لاره لا پاتې ده نو هغه نیمه به هم طی کوو بیا به هدف ته رسیږو.



عابد

# دحوت د۲۴ مې په یاد!

د ۱۳۵۷ هـش کـال دکـب دمیاشـتې ۲۴ مـه نېټـه د افغانسـتان پـه تـاریخ کـې یـوه لـه هغـو ورځـو څخـه ده چـې داشغالگرو بشري جنایتونه به تل ورسره یادیږي او ددې ولس په زور دنه اېل کېدلو عبرت به ورسره ژوندی وي.

د۱۳۵۷ هش کال دکب په ۲۴ مـه دکمونسـتي رژیـم پـه وړاندې ولسي کرکې انفجـار وکـړ اودهـرات ولایـت د ډېـرو ولسوالیو په شمول دهرات په مرکز کې ولسي پـاڅون راپورتـه شـو، دوخـت درژیـم لـه کـړنلارو یـې خپلـه ناخوښـي اعـلان اواسلامي اقدارو تـه داحـترام غوښـتنه یـې وکـړه، خودوخـت رژیم دخپلو بادارانو په اشاره له دغو بې وسلې ولـسي خلکـو سره دتوپک په ژبه خبرې وکړې اود دوی دغوښتنو ځواب یـې دهغوی په عام قتل ورکړ.

دولسي قیام په دریمه ورځ چې دحوت ۲۶ مه وه دهرات ولایت دهغه وخت والي نظیف الله نهضـت، د ۱۷ مـې فرقـې قوماندان سیدمکرم اوهلته مېشت روسي جنرال " ویسلوویچ" په گډه تصمیم ونیو ترڅو دغـه ولسيـ غـږ پـه یـومخیزه وژنـه خپ کړي هماغه و چې دهرات ولایت په ټول ښار اوهره کوڅه کې یې په عامو خلکو دقتل عام ناتار جوړ کـړ، پرسرکونـو یـې ټانگونه راووېستل اوله پاسـه یـې بمبـار پیـل کـړ، تـردې چـې دنږدې ۲۵ زره هیوادوالو په وژنه یې دغه پاڅون ته پای ورکړ.

دلته یوڅه چې ډېرو خلکو د دغې ورځې په مناسبت لـه پامه غورځولي وي؛ دیـادولو دي اوهغـه داچـې د دغـو ولسيـ خلکو په ملاتړ یوشمېر برحاله صاحب منصبان راپورته شول په تېره د ۱۷ مې فرقې زیات شمېر صـاحب منصـبانو دولـس پـه ملاتړ ملاوتړلـه او لـه خپلـو خلکـو سره اوږه پـه اوږه ودرېـدل اوداسې ودرېدل چې ټولو ځانونه قربان او شهیدان شول.

له دغې ورځې ۴۲ کاله وروسته موږ ته ددغې ورځې څـه راپاته دي اوڅه راښیي؟ ترټولو ډېـر روښـانه پیغـام یـې دادی چې نن نه د دغو استبدادي اشغالگرو دنوم اوفکر څه پاته دي اونه یې دلاسپوڅي رژیم، بلکې د دوی پاتې شوني پـیروان هـم نن په خپلو هماغو کړنو دشرم له احساس سره سره دهغوی په کړنلاره لعنت وایي، همدا دنن ورځ دغربي استکبار دغلامـانو لپـاره ښـه درس اوعـبرت دی. دافغانـانو اسلامي تشـخص او خپلواک مزاج ته په پام به سبا دوی هم دخپلو نتیـو کړنـو پـه وجه په ټولنه کې منفور وي اودلته بـه دوخـت اوناسـتې هـیڅ ځای نه لري.

دکب دلسمې ترون همدغه څه روښانه کـوي اونـه بایـد چې دنن داشـغال ملگـري دغـه موقـع هـم دکمونسـتي رژیـم دپلویانو په څېر له لاسه ورکړي، بلکې له زړه دې دولـس ارادو اودهیـواد واقعیتونـو تـه تسـلیم شي چـې پـه دې سره بـه یـې راتلونکی تاریخ جوړ اوله سترې رسوایۍ نه ځـان پـرې خـلاص وي.

له دې سره سره چې دنړۍ هرقوم، هرملت او هره طبقـه په دې اقرار اواعتراف کوي چـې دامریکـا اونـاټو پـه وړانـدې دافغانـانو مقاومـت اومبـارزه دافغانـانو حقـه حـق اودهغـوی دوطن ساتنې، اسـتقلال او خپلـواکۍ مبـارزه وه، خـو بیـا هـم داسې څوک پیداکیږي چې پـه یـو اوبـل نـوم ځانتـه داشـغال دملگرتیا حـق ورکـوي او دا بـرملا یرغـل اوس هـم اشـغال نـه بولي° نو ښکاره ده چې هغوی له خپـل افغـاني غـرور، دیـن او کلتور څخه مسـخه شـوي اویـاداچې دې لنډمهالـه قـدرت او پردۍ ځېرې او ډالرو ترې خودبین سنجش اخیستی دی.

دافغانـانو پـه ختـه او وینـه کـې اسلام اوداسـلام مینـه اغېړلې ده، هیڅ قـوت تـرې دغـه عقیـده نـه شي اخیسـتلای، هغوی هر رنگ کړاو، ربړه او تکلیف منلـی شي خـو پـه اسـلام معاملې او سازش ته هیڅکله تیار نه دي.

دحوت ۲۴ مه مونږ ته همدا درس راکوي پـه خپـل دیـن اوهیواد د دې ولس دمینې اوقربانۍ ښه بېلگه ده.

## داسلامي امارت درهبري شورا غړی او د دعوت ارشاد جلب اوجذب کميسون

# مشر ښاغلی مولوي عبدالکبير صاحب:

**دهوکړه ليک متن واقعاً ارزښتمن سند دی کوم چې به راتلونکي کې زموږد هيواد او جغرافيې د سالميت او ازادي ضامن وي**

دحوت په ۱۰ نيټه دقطر په مرکز دوحه کې له امريکايانو سره داشغال دختامي تړون اسلامي امارت لاسليک کړ، ستاسې په فکر کوم هغه عوامل وو چې امريکايان يې چمتو کړل ترڅو له خپلو ټولو پخوانيو خودخواهيو او زبرځواک غرور څخه تيرشي او دافغانستان دخلکو ديني او ملي ارادي ته غاړه کيږدي؟

بسم الله الرحمن الرحيم

ان الحمد لله والصلوة والسلام على رسول الله قال الله تبارک وتعالی: وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ (صد ق الله العظيم)

ستاسو پوښتنې ته دځواب ويلو وړاندې غواړم ووايم دکب په لسمه د اشغال پای ته رسولو په اړه د دامريکا متحده ايالاتو او دافغانستان داسلامي ترمنځ دهوکړه ليک لاسليکيدل زموږد معاصرتاريخ يوه لويه تاريخي کارنامه ده چې په وياړ يې زه خپل غيور افغان ملت، امير المؤمنين شيخ الحديث مولوي هبة الله اخند زاده حفظه الله، داسلامي امارت رهبري، مذاکراتي ټيم اوټولومجاهدينوته مبارکي وايم او له الله تعالی نه مجاهد افغان ولس لپاره دنوروبرياوو ترڅنګ داسلامي نظام دنفاذ هدف ته درسيدو دعا کوم او له ښتن تعالی څخه غواړم چې هيواد کې دتلپاتي امنيت وثبات اود مظلوم افغان ولس دخوشالۍ اوسوکالۍ لپاره دي ښه پال ثابت کړي.

دافغانستان اسلامي امارت په قيادت کې افغان مجاهد ولس له تيرو ۱۹ کلو راهيسې په څومره صبرواستقامت اولوړعزم دمجاهدينو په ملتيا اوملاتړ کې کومې ستونزې اومشکلات وګالل شايد تاريخ کې يې کم ولسونه مثال ولري، دداسې باهمته، ميړني او سرلوړي ولس په درلودو موږ ډاډ محسوسوو چې دافغانستان دملي اوديني وجود دبقا دښمنان به هيڅکله برې ونه مومي.

هرچې د هغوعواملو خبره ده چې امريکايان يې اړکړل چې داسلامي امارت سره خبرو او مذاکراتوته کيناستل مخفي اوپټ ندي؛ پوره روښانه دي، ولې چې امريکا دلته له کومې ډلې، د کوم توکم اويا څو کسانوسره په جنګ نه وه بلکې ديوملت سره په جنګ وه، اوتجربو ښودلې چې دنړۍ مجهزپوځونه چې کله دملتونو سره په جنګ کې کيوتي نو پوځونوجګړه بايللې اوملتونوجګړه ګټلې ده دلته هم داسې و شول چې دنړۍ د۴۹ هيوادونو پوځونه مات شول او افغان ولس برى ترلاسه کړ، کله چې امريکا خپله ماته وليده نودرک يې کړه چې دخبرو او مذاکراتو پرته يې بله لار نه ليده هغه و چې تيرو اتلس مياشتوپه اوږدوکې د يوولس مخامخ مذاکراتي دورو، وروسته دامريکا او اسلامي امارت ترمنځ داشغال پای ته رسولو په اړه دهوکړه ليک په متن توافق راغلی او دکب په۱۰ مه هم هغه متن دقطر په پلازمينه دوحه کې دطرفينو داستازو لخوا دنړيوالو په حضور کې لاسليک شو .

دې لړکې دجهادي صف وحدت هم دقوي عامل په حيث رول درلود، ولې که ديو جهادي صف پر ځای ګڼو صفونو شتون درلودی شايد مونږ ددې تاريخي مرحلې شاهدان نه وی شوي

**پوښتنه: جناب مولوي صاحب!**

**تاسې به ترون مطالعه کړی وي، داسلامي امارت سياسي استاځو او مذاکراتي ټيم په نوموړي ترون کې ترکومه حده داسلامي امارت له برحقي داعيې او دافغان مجاهد ولس له غوښتنو دفاع او تمثيل کړی؟**

داشغال پای ته رسولوپه اړه دطرفينو (دافغانستان اسلامي امارت او امريکا متحده ايالاتو) له لوري دلاسليک شوي ترون متن لفظ، په لفظ د اسلامي امارت دفعالې اوبيدارې ديپلوماسۍ ښکارندوی دی، زکه امريکا سره مخامخ چنې وهل او پرې دخپل دريځ منل دنړيوالو لپاره دحيرانتيا وړبريښي، نو دهوکړه ليک متن واقعاً ارزښتمن سند دی کوم چې به راتلونکي کې زمونږ دهيواد اوجغرافيې دسالميت اوازادي ضامن دی، دلاسليک له نيټې دادی څه کم يوه مياشت تيريږي چې نه دهيواد دننه اونه بهر دکوم حقوق پوه اوقانون پوه لخوا داسې نيوکه يا اعتراض وشو چې ګواکې د هوکړه ليک په فلانی بنديا شق کې تيروتنه شوې او يا پکې داخامي اوسهوه شوې؟ نودا خاموشي مونږ ته ډاډ رابښي چې لله الحمد دښمن هم ددې سند په جامعيت اوصحت اعتراف لري

**پوښتنه! دترون له لاسليک ورسته ددعوت ارشاد کميسون له ادرسه مو افغان ولس ته پيغام څه دی؟**

داشغال دپای ته رسولو په اړه دهوکړه لاسلکيدو په وياړدامیرالمؤمنين شيخ الحديث مولوي هبة الله اخندزاده پيغام او دهغه له لوري دشوې عامه عفوې له اعلان وروسته مونږ په افغان ولس غږ کوو چې هرسړی دي کوښښ وکړي چې هغه تيروتي افغانان چې تراوسه دپرديو په خدمت کې لګيادي او دخپلو هيوادوالو سره جنګ کوي هغوی وپوهوي چې دخپل هيواد او ولس پرضد د جنايتونو دارتکاب څخه ډډه وکړي، دې لړکې د دعوت وارشادکميسيون لخوا هم دوی ته اسانتياوې په پام کې نيول شوې او ډاډ ورکوو چې دجګړې څخه لاس په سرکيدونکو

او ددښمن له ليکونه راجلا کيدونکوته دهغوی دسر اومال خونديتوب په اړه ډاډ ورکوو اميد دی ټول له دې فرصت او موقع نه مثبته ګټه واخلي. پای



# ازادی ته!

گلونه درته شيندمه پر لاره زر راځه
زغملی دې نور نه شم، انتظاره زر راځه

کلونه کيږي ورک دی دجنګونو ګرد غبارکې
غيب شويه ځورېدليه ابتکاره زر راځه

دستاله غنمرنګ مخ مې لوږی کړې غازي ياره
ځواني دې نظر مه شه لوږ چيناره زر راځه

تحفه د ازادۍ درسره راوړه په لاسو کې
د سترو اميدونو ستر سالاره زر راځه

ارمان پسې ارمان دارمانونو غېږ کې پاتې
پوره مې کړه ارمان طالبه ياره زر راځه

هيوادبه موشي خلاس د يرغلګرولـه اشغاله
شپيلۍ د ازادۍ وهه نګاره زر راځه

نوري دې په فراق کې له وختونو کرېدلی
پټ درد ته يې دوا شه اې قراره زر راځه

# د کب د۱۹ مې یادابښت

ارمان

تاریخ دهر قوم اوهرملت ښه اوبد دواړه له ځان ساتي، او راتلونکو نسلونوته یې دیولوی امانت په توګه سپاري، څنګه چې دیو قوم یا ملت ملي ویاړونه، بریاوې، اودهغه دیني، ملي او اخلاقي عظمتونه له ځان سره خوندي کوي همداسې دهغه شرمونکي او له خجالت څخه ډکې کړنې اوبد اخلاق هم یادابښتوي او راتلونکونسلونو ته یې رسوي

تاریخ که یوپلوته دهر ولس دمیړنیو، ننګیالیو او قهرمانانوحماسې او دهغوی کارنامې لیکیبل پلوته دهرملت دننه دمجرمینو، غدرانو، د پردیو دغلامانو او ګوډاګیان بیوګرافي هم وړاندې کوي او دهغوی نه ښبونکي جنایتونه او خیانتونه غندي.

که په دې اړه دتاریخ بابونه نه راسپړم، شاید خبره ډیره طولاني شي. یوازې یو تازه تاریخي جنایت او خیانت ته خپل قلم تم کوم

هو! دروان ۱۳۹۸ ل کال د کب د۱۹ مې شرمونکی جنایت او بدمرغه ملي خیانت یادوم

له شک پرته دکب د۱۹ مې شرمونکې فاجعه به تاریخ تل په کلکوالفاظومحکوموي اوپه عاملینو او سرته رسوونکوبه یې لعنت وایي.

په یاده نیټه زموږ دولس په سرنوشت ملنډې ووهل شوې، زموږ ملي او دیني ارزښتونه تر پښولاندې پایمال شول، هغه داسې چې په یوه ورځ اویو وخت دوه کسانو دولسمشرانو په حیث جلا، جلا لوړې وکړې، دملت د سرنوشت پوري یې و خند ل او افسوس چې دغو دواړوکرغیړنو اوبدمرغه انسانانوته یوشمیر بې ضمیره خلکو لاسونه وهل او ورته یې په دې ستر ملي جنایت داد ورکاوه .

افغانستان چې دامریکا لخوا اشغال شوی هیواد دی، اوولس یې له ازادي او استقلال نه محروم دی، عبد الله او غني دخپلوغاصبو بادارانو په لمسون دافغان اصیل ولس په تاریخ ملنډې ووهلې او ټول نړیوال یې ورپورې وخندول

هر یوته خپلوخارجي بادارانو ډاډ ورکړی و چې ته لوړه وکړه موږ درته کمپاین کوو او ته له هغه بل نه دولسمشرۍ څوکۍ لپاره ډیر مستحق یې.

په یاده نیټه دغه بدمرغه فاجعه داسې رامنځته شوه چې اشرف غني په ارګ کې دخپلې لوړې کولو لپاره مراسم جوړکړل او عبد الله په سپیدار ماڼۍ کې دخپلې ولسمشرۍ لوړې کولو لپاره مراسم ونیول

په یوه نیټه او یو وخت دواړو لوړه وکړه اوځانونه یې دولسمشرانوپه حیث معرفي کړل

هریوبهرته د خپل نفوذښودو لپاره خپل یوشمیر ملاتړي دخارجي میلمنوپه حیث راغوښتي وو او د میلمنو په څوکیو یې کینولي وو، څو ورته چکچکې اولاسو نه ووهي

دهریو دلوړې وروسته خپلو مرستیالانو ته سوګندونه ورکړل یوه ولسمشر (غني) داجرائیه ریاست دلغوه کولو فرمان صادرکړ اوبل ولسمشر (عبد الله) د اجرائیه ریاست مامورینوته پخپلو دندو د معمول په څیردکار کولو حکم وکړ.

هریو سملاسي جلا، جلا دخپلو، خپلو کابینوپه جوړولو لاسونه پورې کړل او وزارت خانوته یې دوزیرانوپه معرفي کولو کې مسبقت شروع کړ.

هریو دخپلو کاذبانه بریاوو په اړه د تبریکیو پیغامونه وصولول او هم یې په شرمونکې توګه غافلو افغانانو ته دخپلو جعلي پلانونو شنه بڼونه وربښودل.

کتونکي باورلري: چې ددې ټولې لوبې ترشا امریکا لاس درلود. هغه غواړي له ځان وروسته افغانان په سمتي اوژبنیو دښمنیوکې ښکېل کړي، افغانستان کې دپښتون، تاجک، هزاره او نورو توکمونو ترمنځ ستونزې او مشکلات پیدا کړي، په دې لړکې دیوهیواد دزعامت څوکۍ لپاره ددوه دعویدرانو رامنځته کول یې لومړی ګام ګڼل کېږي

اندیښنه شته چې دا بدمرغه اقدام به دافغانستان دتجزیې په لور عملي ګام هم ثابت شي، زکه دنیم هیواد چارې به عبد الله په لاس کې واخلي او دنیم به اشرف غني.

بیشکه دا دافغان ولس لپاره دامتحان شیبې دي باید د دواړو غدرانوپه وړاندې چوپ پاته نشي؟ ټول توکمونه اوقومونه دي په دې فکر وکړي چې اغیار غواړي افغانان په لساني او توکمي توپیرونه وویشي او سره په جنګونوکې یې ښکېل کړي

په حقیقت کې نه عبد الله دملت په اراده اورایه ولسمشرټاکل شوی دی او نه اشرف غني دولس درایوپه ګټلو ولسمشر غوره شوی دی، دواړه دامریکا دخوښې کاندیدان دي، او امریکارامخ ته کړي دي، هدف یې دافغانستان تجزیه اودافغانانو ترمنځ دنفرت اوکرکې اوورونه بلول دي افغان ولس باید ځیر اووسي چې دغه دواړه ولسمشران دیوې سیکې دوه مخونه دي، دیو بادار دوه غلامان دي، د دواړو هدف دافغانستان ترقي اوښېرازې نده بلکې دواړه غواړي چې امریکا څنګه خوشاله وساتي؟ په دې کې دیوبل سره سیالي او مسابقت کوي، پکاردی هغه افغانان چې دافغانستان ملي او دیني ارزښتونو ته ژمن او وفادار دي هغوی باید د دواړو په لومه کې ونه نښلي او له دواړو سره دي خپل پراخ پریکون اعلان کړي پای

## اووه هلاکوونکي ګناهونه

**عن أبي هريرة – رضي الله عنه – أن رسول الله – صلى الله عليه وسلم – قال: ((اجتنبوا السبع الموبقات))، قالوا: يا رسول الله، وما هن؟ قال: ((الشرك بالله، والسحر، وقتل النفس التي حرم الله إلا بالحق، وأكل الربا، وأكل مال اليتيم، والتولي يوم الزحف، وقذف المحصنات المؤمنات الغافلات))؛ متفق عليه.**

**ژباړه: له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي: له اوو هلاکوونکو ګناهونو څخه ځان وساتئ! (خلکو) وويل: هغه څه دي ای د الله رسوله؟!**

**رسول الله صلي الله عليه وسلم وفرمايل: له الله تعالی سره شريک نيول، کوډې کول، په نا حقه وژل، سود خوړل، د يتيم مال خوړل، د غزا په ورځ شاه ګرځول (جهاد کې تېښته کول) او په پاک لمنو مسلمانو ناخبره مېرمنو ناحقه تورونه تهمتونه تړل.**

داسلامي امارت دمشرتابه دفتر مشر او د رهبري شورا غړی

# ښاغلی مولوي امیرخان متقي:

- زما په نظر کلک مقاومت، په جهادي صف باندي د انحراف، انشعاب او نورو ټولو حربو د کارولو ناکامیدل، د امارت پخه او معقوله پالیسي او د امریکا مجبوریت د دې سبب شول چې بالاخره تړون لاسلیک شو.
- د مذاکراتو په مهال به ماته خوږه خاطره داوه چې مجلس کې به زموږ د استدلال تله درنه شوه او جانب مقابل به له استدلال څخه عاجز شو نو به وویل چې اوس به یو بریک واخلو !!

**پوښتنه: داسلامي امارت دمشرتابه دفتر مشر او د رهبري شورا غړی محترم مولوي امیرخان متقي صاحب!**

تاسې له امریکایانو سره په اوږدو مذاکراتي پړاوونو کې شریک وی او ټول جریان ستاسې ترمخ و، ډیرو خلکو ته دا ناشوني بریښیدله چې له امریکاسره دې داسلامي امارت مذاکرات کومه نتیجه ورکړي ځکه دا ذهنیت و چې امریکایان به حتما غدرکوی او د مذاکراتو له نهایي کیدو به تیښته کوي، اخیر کوم عوامل او شرایط وو چې امریکا چمتو شوه ترڅو امارت سره دسولي تړون لاسلیک او خپل اشغال ته دپای ټکي کیږدي؟

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم.

له هر څه مخکې تاسو او قدرمنو لوستونکو ته سلام او احترام تقدیموم. لکه تاسو چې وویل د اسلامي امارت او امریکا تر منځ د اشغال د خاتمې تړون واقعا د خپل ډول یو بې سابقې پرمختګ و چې د الله تعالی په نصرت سره د لاسلیک تر مرحلې ورسید. زما په نظر د جهادي صفوفو قوي مقاومت، په جهادي صف باندي د انحراف، انشعاب او نورو ټولو حربو د کارولو ناکامیدل، او د اسلامي امارت پخه او معقوله پالیسي او د امریکا مجبوریت د دې سبب شول چې بالاخره تړون لاسلیک شو.

**پوښتنه : جناب متقي صاحب کله چې دقطر په مرکز دوحه کې دکب په ۱۰ نیټه تاریخي تړون لاسلیک کړی شو ستاسې په فکر جالب ټکي یې څه وو یعني افغانانو او اسلامي امارت دنوموړي تړون له مخې څه ترلاسه کړل؟**

جواب:

ــ داتړون خو په حقیقت کي د افغانستان د اشغال د خاتمې تړون دی او د یوه اسلامي هیواد ازادي او د اوسنی نړی حالاتوته په پام سره یې استقلال ګڼل دومره لویه لاسته راوړنه ده چې باید په تعریف یې کتابونه ولیکل شي.

ــ په نړیواله سطحه له یوه غیر اسلامي نړیوال ځواک سره کېدای شی دا بې ساري ترون وي چې د مقدس شریعت اصول په کلکه پکې رعایت شوي.

ــ دې توافق جهادي ذهنیت درلودونکو ته دا فکر ورکړ چې په سیاسي ډګر کې هم د جهاد اهداف تر لاسه کېدای شي او بل دا چې د اسلامي امارت قیادت بې ساري سیاسي وړتیا هم لري.

ــ دې ترون د افغانستان د راتلونکي لپاره د یوه معقول جوړ جاړي دروازه خلاصه کړه.

ــ یاد ترون په دې برخه کې واقعا بې ساری دی چې دوست او دښمن لیري او نږدې خیرخواه او بدخواه هیچاته هم د اعتراض ځای په لاس ورنغی.

**پوښتنه : کله چې تېرکال دامریکا ولسمشر ټرمپ دیولړ پلمو له مخې دسولې خبرې وځنډولې اوترون لاسلیک مخه یې ډب کړه د سیاسي دفتر د غړو غبرګون ځنګه وو خصوصا داسلامي امارت سیاسي مرستیال ښاغلي ملا عبدالغني برادر اخند عکس العمل څه وو او امید یې لاره چې یوه ورځ به خبري نهایی کیږي او معاهده به سرته رسیږي؟**

ځواب: کله چې د امریکا د متحده ایاتو جمهور رئیس ډونالډ ټرمپ د مذاکراتو د ځنډ ټویټ وکړ، محترم ملا برادر اخوند فورا د مذاکراتي ټیم مجلس را وغوښت او په مجلس کې مو په اتفاق سره دا فیصله وکړه چې موږ به معقول او معتدل دریځ اعلانوو هغه و چې بیا مو په همدې ترتیب اعلامیه خپره کړه چې هم نړیوالو تائید کړه او هم هیواد والو او هم امریکا یې چارواکي تر لازیات فشار لاندی راغلل، زموږ مجلس په هغه ورځ داخبره هم فیصله کړه چې نه شدید عکس العمل ښه یو او نه هم زاری ورته کوو، په خپله به بیرته د مذاکراتو میز ته راشي چې بالاخره همداسي وشول.

**پوښتنه : متقي صاحب ! بین الافغاني راتلونکي ناسته څومره بریالی بولئ کوم جهتونه به پکې برخه لري؟ دکابل رژیم به هلته دڅه ډول موقف درلودونکی وي ؟بله مهمه خبره داده که د ناستې برخوال په یو خوله له اسلامي امارت څخه وغواړي چې په خپلو یو لړ مواقفوکې تنزل وکړي لکه د امارت په ځای دولت، د ښځو ګډون په نظام کې د بیان ازادي او نور ...د امارت ځواب به څه وي ؟**

ځواب: په بین الافغانی مذاکراتو کې به افغاني جهتونه ګډون کوی او د کابل اداره د یوه جهت په ډول ګډون ګولای شي خو د حکومت په حیث یې اسلامي امارت په رسمیت نه پیژني، او داچې څه ډول فیصلې به کیږي، زه فکر کوم چې په دې اړه تر وړاندوینې به دا ښه وي چې په هغه نقش قدم ولاړ شو لکه له امریکا یانو سره چې پري ولاړو هغه داسې چې قدم په قدم موضوعات له شرعي، سیاسي اوملي اړخه تحلیلول او د جیدو علماء کرامو او مشرانو سره شریکول او څه ته چې مقدس شریعت اجازه ور کوي هغه منل او چې غیر مشروع وي هغه ردول، زه یقین لرم چې په دې ډول به د وخت د ضرورتونو او مصلحتونو په نظر کې نیولو سره ښه پرمختګ وشي.

**پوښتنه:  محترم متقي صاحب له امریکایانوسره د مذاکراتو په پړاوونو او هم له افغانانو سره د مسکو او دوحې په ناستو کې به خامخا تاسې ته جالبي صحني مخته درغلي وي که څه دخوږو او ترخو خاطرو دویلو لورینه د څرک مجلې په لوستونکو وکړي خوند به وکړي؟**

ځواب: د مذاکراتو په دوران کې ترخې خاطرې هغه وې چې له وطنه به د دښمن د چاپو، بمبارد او په هیواد والو د وحشت او ظلم خبرونه را رسیدل او ویل کېدل به چې دا هرڅه په اسلامي امارت باندی د فشار راوړلو په موخه تر سره

کیږي تر څو په مذاکراتو کې تنزل وکړي او دا د مقابل لوري اشتباه وه ځکه په نظریاتي خلکو فشار اثر نه کوي بلکې نور یې هم عزم ټینګوي. او بله ترخه یا ترخې خاطري مو دا وي چې کله به مو په شپو ورځو او حتی هفتو مذاکرات وکړل او خاص پرمختګ به ونه شو.

او خوږې خاطري خصو صا چې ماته به جالبي وي هغه به هغه صحنه وه چې په مذاکراتي مجلس کې به زموږ د استدلال تله درنه شوه او جانب مقابل به وویل چې اوس به یو بریک واخلو یعني وقفه به وکړو تر څو خپلو کې بحث وکړي او جواب پیداکړي او طبعا به هغه صحنه هم جالبه وه چې خبره به زموږ په ګټه فیصله شوه.

**پوښتنه: محترم متقي صاحب! په پای کې که اوسنیو خاصو شرائطو ته په پام سره مجاهدینو او عام ولس ته څه پیغام لرئ هیله ده راسره شریک یې کړئ.**

ځواب: پیغام مې مجاهدینو او د افغانستان ټول مسلمان ولس ته دا دی لکه څنګه چې په یو انسان په شخصي ژوند کې کله ناکله د ازموینښت او ابتلاء ورځ راځي، همداسې د ملتونو او ولسونو په ژوند کې هم د ابتلاء مراحل راځي. دا چې د یو ملت ژوند د یوه فرد له ژوند څخه اوږد وي نو ابتلاء یې هم د ورځې نه بلکې د کلونو په حساب وي. د افغانستان په مسلمان ولس راغلی اوسنی حالت زموږ د ازموینښت او ابتلاء مرحله ده. په داسې وخت کې باید د یوه ملت په حیث خپل حواس او روحیات ونه بایلو، بلکې لکه په تیرو اتلسو کلونو کې مو چې په پوره متانت، حوصله، اتحاد او تدبر له راغلي امتحان سره مقابله کړې او لله الحمد بالاخره بریالي راوتلي یو، په راتلونکي کې هم باید خپل همدا د سنجیدګۍ خاصیت وساتو. باید د حالاتو په سرو او تودو، سختیو او آسانیو دغه راز د دښمن د تبلیغاتو او بیلابیلو حربو په وړاندې باید خپل دیني اصول، ستر هدف او علیا مصالح راڅخه ورک نه شي.

## غوره خبرې

۱ - د قرض څخه ځان ساته، ځکه قرض دورځې ذلت دی او د شپې غم دی .

۲ - سوال مه کوه، ځکه سوال د حیاء اوبه د مخ څخه ختموی.

۳ -په شر باندې شر مه دفع کوه، بلکې په خیرباندې شر دفع کړه.

٤ - توبه مه وروسته کوه، ځکه مرګ ناڅاپه راځي.

۵ - د حسد نه ځان ساته،ځکه حسد دین بربادوي، نفس کمزوری کوي، او خفګان راولي.

٦ - دغوصې اولنی حالت لیونتوب وي او اخري حالت یې پیښمانتیا.

۷ - د هر حکمت سر نرمي کول دي.

۸ - د بد ملګري څخه ځان لرې ساته .

۹ – د الله تعالی سره شرک مه نیسه، ځکه شرک ډیر لوی ظلم دی.

۱۰ - خپل طعام په نیکانو خلکو و خوره او په ټولو کارونو کیې د علماؤ سره مشوره کوه.

۱۱ - چپ کیناستل د بی فائدی خبرو نه غوره دی.

۱۲ - که یو سړی درسره دغوصې په حالت کی انصاف وکړي، نو بیا ورسره دوستي وکړه

۱۳ - چا چې راز وساته نو اختیار به یې په خپل لاس کی وي.





د اسلامي امارت دسياسي دفتر اومذاكراتي ټيم غړى **شيخ الحديث مولوي شهاب الدين دلاور**

# د امريكا په امضا د نوي اسلامی حكومت منل د كابل اداره رسما لغوه كړه او اسلامي امارت په نړيوال ميدان كې خپل سيال او مقابل ومانه!!

زمونږ د امريكايي لوري سره يقينا ډېر اوږدې او ستومانونكې خبرې وشوې چې تقريبا ۱۸ مياشتې وخت يې واخيست، البته زه متيقن وم چې اخير به دا مذاكرات يوه نتيجه وركوي چې اشغال به ختم او اسلامي نظام به ومنل شي، لكه چې همدا مهم ټكي يې په توافق نامه كې هم درج شول او دا خوش باوري مې د استشهاديانو، شهيدانو، بنديانو او مجاهدينو د اخلاص او فداكاري له وجې وه، او هم مې چې د مشر تابه، سياسي دفتر او مذاكراتي ټيم اخلاص او ځيركتيا ته كتل، اميدونه مې نور هم اضافه كېدل چې امريكا به بالاخره له خپل غرور نه راګرځي او د مجاهد ملت غوښتنې به مني او د خپلو ځواكونو د وتلو او اشغال د خاتمې تړون به لاسليک كوي.

**په دې تړون كې د افغانستان د اسلامي امارت سياسي ګټې په لاندې ډول دي:**

۱: د افغانستان د اسلامي مشروع جهاد په سياسي او جهاني سطحه سره د ازادی مقاومت منل.
۲: د دهشتګردي نقد د تل له پاره ختمول.
۳: د افغانستان اسلامي امارت د اشغالګرو اصلي حريف منل.
۴: د افغانستان اسلامي امارت د افغانستان د قضيې د حل اصلي مالک منل.
۵: په اينده كې اسلامي حكومت منل.
۶: په اينده كې په افغانستان كې د امريكايانو له خوا په نه مداخله امضا كول.
۷: افغانستان د امريكا مقابل منل.
۸: امريكا افغانستان ته خپل راتګ ګويا غلط او ناروا بلل.
۹: زمونږ نولس كاله مخكې داعيه چې جنګ د حل لاره نه ده منل.

د افغانستان اسلامي امارت ته د دې تړون حقوقي ګټې:
۱: د مبارزې مشروعيت په جهاني سطحه منل.
۲: د دهشتګردي تورونه ختم شول.
۳: په اينده كې ده نه مداخلې امضا.
۴: په اينده كې په اسلامي حكومت اعتراف او امضا.
۵: د امريكا په امضا د نوي اسلامی حكومت منل دكابل اداره رسما او حقوقا ختميدل. ۶: په حقوقي طور سره اسلامي امارت د امريكا مقابل منل.
۷: د بين الافغاني مذاكراتو له شروع څخه مخكې د ۵۰۰۰ زره بندي مجاهدينو خلاصيدل.
۸: د افغانستان د اسلامي امارت فعاليتونه مشروع ثابتېدل.

كله چې دا تړون د ملګرو ملتونو له طرفه تائيد شو؛ نو د دې تړون ټولې سياسي او حقوقي ګټې په نړيواله سطحه ومنل شوې، په حقوقي ډول تورليست او نور محدوديتونه ختم شول، البته صرف كاغذي كاروايي به هم د توافق نامې له مخې په درې مياشتو كې ترسره شي

په دې تړون سره نه تنها د كابل اداره منزوی شوه بلكې نړيوال مشروعيت يې هم له لاسه وركړ

# دهم حوت؛ روز ماندگار در تاریخ آزادگان




■ حبیبی سمنگانی

امروز شنبه دهم حوت ۱۳۹۸ خورشیدی است. هواپیمای شرکت هواپیمایی قطر (Qatar Airways) ساعت دوازده و پنج ظهر در میدان هوایی بین المللی حماد، شهر دوحه می نشیند. بنده شاید آخرین مهمانی هستم که به هدف اشتراک در مراسم امضای پیمان پایان اشغال میان امارت اسلامی و امریکا به کشور قطر رسیده ام. باید سعی کنم تا دقایق بعدی به شیراتون، هوتل قدیمی، تاریخی و پنج ستاره شهر دوحه برسم. جایی که عصر- امروز پیمان پایان اشغال با حضور مقامات ده ها کشور و نمایندگان صدها رسانه، امضا و تصویب می شود.

در چند میتری دروازه مرکزی شیراتون با مولوی احمدالله وثیق، معاون کمیسیون امور فرهنگی امارت اسلامی یکجا شدم. می بینم که تیموتی ویکس، استاد استرالیایی پوهنتون امریکایی در کابل، که در بدل انس حقانی رها و تازه مسلمان شده است با محترم وثیق و فدا صاحب در موتر نشسته است. با او معانقه کردم. اما او از موتر پایین شد و در حالیکه مشغول گفتگوی تلفونی بود از ما دور رفت. پرسیدم؛ تیموتی چرا پایان شد؟ گفتند: او کوششی زیادی نمود، اما کشور استرالیا شاید بر اثر فشارهای امریکا برای او اجازه نداد که درین مراسم حضور یابد. او با افسردگی از دروازه شیراتون پس برگشت. در حقیقت، امریکا جرات این را نداشت که جهان صحنه ای از پیروزی اخلاقی امارت اسلامی را تماشا کند. بلی؛ غلبه طالبان تنها به کوه ها و دشت ها، و شهرها و قریه ها خلاصه نمی شود، بلکه در حقیقت این تسخیر قلب هاست که طالبان را از دیگران امتیاز بخشیده است.

ما سه تن رفقا (وثیق صاحب، فدا صاحب و بنده) داخل لابی هوتل شیراتون شدیم، هنوز ساعتی به برگزاری مراسم مانده بود. خبرنگاران دور ما جمع شدند، عکس می گیرند، صحنه برداری می کنند و معلوماتی می خواهند که پاسخ آن را سهیل شاهین می تواند بدهد. لحظاتی پس تر، بعضی از مقامات، اعضای دفتر سیاسی و تیم مذاکراتی امارت اسلامی به دروازه هوتل می رسند. گروهی از ژورنالیستان سهیل

شاهین را در حصار خود می گیرند و از او در مورد چگونگی و آینده پیمان، جویا می شوند.

ساعت سه عصر است. به جز محترم ملا برادر آخند، سائر نمایندگان و مهمانان امارت اسلامی در هوتل حضور یافته اند. دقایقی پس تر، همه با نظم خاص به سوی تالار جلسه روانه می شوند. اما پیش از رسیدن به تالار، از چادرهای خود مصلی مسازند و برای نماز عصر صف می بندند. آنان با جامه های سفید، واسکت های سیاه و دستارهای سیاه و سفید، بی پروا از چهار اطراف خود، مشغول ادای نماز و ژورنالیستان مصروف صحنه برداری آن هستند. ادای با جماعت نماز نشان می داد که خمار کامیابی و پیروزی، این بندگان بی آلایش پروردگار را از ذکر و شکر خدا بی پروا نساخته است. نماز یقینا جایگاه بلند و وقیعی در حیات لیل و النهاری هر مجاهد دارد.

اکنون سه و نیم عصر است. بیشتر مهمانان در تالار جلسه حضور دارند و برای آغاز مراسم لحظه شماری می کنند. اگر چه تعداد زیادی از وزرای خارجه، نمایندگان ویژه و سفرای کشورهای مختلف یکی از پس از دیگر داخل تالار می شوند و بجای خود می نشینند، اما مرکز نگاه کامره ها هنوز هم دستار پوشان و سفید پوشان هستند. بلی، ظاهراً عنوان جلسه «موافقتنامهء آوردن صلح به افغانستان» بود، اما در حقیقت در و دیوار تالار شاهدی می دهد که گردهمایی امروزی به افتخار آن رهروان راه حق برگزار شده، که آمده اند تا پیروزی مبارزه نزده سال خود در برابر اشغال را جشن بگیرند.

مراسم با قدوم معاون سیاسی و رئیس دفتر سیاسی امارت اسلامی محترم ملا برادر آخند رسما آغاز شد. پس از تلاوت قرآن، نخست محمد بن عبدالرحمن آل ثانی، وزیر امور خارجه و معاون نخست وزیر قطر، ضمن ابراز تاثرات، مهمانان خود را خوش آمدید گفت. سپس مایک پمپیو، وزیر امور خارجه ایالات متحده امریکا سخنرانی کرد. او چیزی تازه برای گفتن نداشت و نباید هم می داشت. پمپیو همان جملات دیرینه مقامات امریکایی را در مورد قطع روابط امارت اسلامی به اصطلاح با تروریسم جهانی به ویژه القاعده باز هم تکرار کرد.

اکنون محترم ملا برادر آخند، انیس و مونس مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد و از مؤسسین انگشت شمار امارت اسلامی، بیانیه کوتاه خود را به خوانش می گیرد. بسیاری ها دران روز پر افتخار سیمای مرحوم امیرالمؤمنین را در چهره این یار وفادار او می جستند و خوشحال بودند که یادگار ارزشمند مرحوم امیرالمؤمنین را با خود دارند.

حرف حرف محترم ملا برادر آخند نه تنها در تالار، و نه تنها در افغانستان، بلکه در سراسر جهان اسلام با جهانی از احساسات و شادمانی شنیده و اشک های امتنان و خوشحالی از چشم ها سرازیر شد. مسلمانان تماشا می کردند که چطور ابرقدرت جهان در برابر چند تن درویشان خدا پرست زانو می نهند. این محض فضل بیکران پروردگار بود و مصداق واقعی: كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّـهِ ۗ وَاللَّـهُ مَعَ الصَّابِرِينَ – البقره: ۲۴۹

محترم ملا برادر آخند در بیانیه خود گفت: «مردم افغانستان از چهار دهه به اینسو تکالیف زیادی را متحمل شده اند و من امیدوارم که با خروج تمام نیروهای خارجی از افغانستان، افغان ها زیر چتر نظام اسلامی نفس راحت بگیرند، به زندگی آرام آغاز کنند و همه به آبادی و وحدت ملی کشور متوجه شوند. از همین سبب، بر تمام جهت های افغانی صدا میکنم که صادقانه، برای نظام آزاد و قوی اسلامی به میز مذاکرات بیایید، تا با اتفاق برای ارزش های اسلامی و منافع ملی گردهم بیائیم». سخنان او در داخل تالار با شعارهای وجدآور «الله اکبر» استقبال شد.

سپس هرگاه پیمان پایان اشغال از سوی محترم ملا برادر آخند و زلمی خلیلزاد، نماینده خاص امریکا برای صلح افغانستان امضا می شد، باز هم نعره های ایمان پرور «الله اکبر» نیروی ایمانی فرزندان دین و میهن را به نمایش می گذاشت.

ادامه دارد...



# د اسلامي امارت د سیاسي کمیسون او مذاکراتي ټیم غړی

# مجاهد ورور محترم حافظ انس حقاني صاحب:

## نن چې د اشغال وجود له منځه ځي او امریکایان زموږ پاکه داعیه مني؛ دا زموږ د جهاد او قربانیو نتیجه ده.

**پوښتنه ښاغلی مجاهد ورورو انس حقاني! ستا داسارت لـه غمجنـو پوښـتنو او خبرو به فی الحال تیرشو دخوښیو او فتحو خواته به ولاړ شو**

**دکب په ۱۰ چې دقطر په مرکز دوحه کې له امریکا سره کوم تړون اسلامي امارت لاسلیک کړ تاسې په هغو شیبو او کنفرانس کې حاضر وی کـه خپل تـاثرات راسره شریک کړی چې دغه تړون په تاریخي او جهادي لحاظ څومره مهم او افغان مجاهد ولس ته یې څه ورکړل؟**

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وحده، والصلاة والسلام علی من لانبی بعده،

اما بعد، د افغانستان د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون ټولو کارکونکو او د ځرک مجلې درنو لوستونکو ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

الله مو د دواړو جهانونو بریالیتوبونه نصیب کړه، مننه کوم چې ستاسي مجله دومره حوصله لري چې زموږ تاثرات تر درنو لوستونکو رسوي، الله تعالی مو ټول فرهنګي خدمتونه قبول کړه،

د ۱۳۹۸ کال د کب د میاشتې په لسمه چې د ۲۰۲۰ کال د فروري له ۲۹ نیټې سره سمون خوري د قطر هیواد په پلازمینې دوحه ښار کې د افغانستان د اسلامي امارت او امریکایانو ترمنځ یوه تاریخي توافقنامه لاسلیک شوه.

د همدې توافقنامې له مخې په رسمي ډول په افغانستان کې د اشغال خاتمې ته د پای ټکی کیښودل شو او امریکایان دې ته حاضر شول چې په ۱۴ میاشتو کې له دیپلوماتونو پرته نور خپل ټول ځواکونه له افغانستانه وباسي.

دغسي یو توافق امریکایانو په کال ۱۹۷۵م کې له ویتنامیانو سره هم لاسلیک

کړی و، خو په دومره توپیر چې هلته د دوی په مقابل کې یو داسې دولت جنګیده چې د هغه تر شا روسیه، چین او په کمونیستي بلاک کې شامل نور ټول کمونیستي هیوادونه و لاړ وو.

اما په افغانستان کې د اشغال په وړاندې جګړه له ویتنام څخه متفاوته وه، دلته افغان ولس په تیره طالبان یوازې د امریکا په مقابل کې نه؛ بلکې د هغوی ترڅنګ یې د هغه پوځي ایتلاف مقابله هم کوله چې د امریکایانو تر اشراف لاندې له (۴۹) هیوادونو څخه تشکیل شوی و.

یعنی اسلامي امارت په داسې حال کې چې د هیڅ کوم بهرني هیواد پوځي او سیاسي حمایت یې تر شا نه و په یواځې سر له امریکا او د هغوی له نړیوال ایتلاف چې ناټو ترون هم ورکې شامل و په خالي لاس خو د ایمان په زور مقابله کوله.

دا مقابله یې د الله تعالی په نصرت په داسې بریالیتوب وګټله چې د هغوی په مقابل کې د پنټاګان او ناټو نظامي ماهرینو په خپلې ماتې اعتراف وکړ.

د یاد ترون د لاسلیکولو په مراسمو کې د امریکا د بهرنیو چارو د وزیر مایک پمپیو او د ملګرو ملتونو د رسمي استازي په شمول د نړۍ د خواوشا پنځوسو هیوادونو د سفیرانو شتون د امریکایانو پر ټولو هغو الزاماتو او تورونو د بطلان خط راکش کړ کوم چې یې د اسلامي امارت په خلاف ترسره کول، د اسلامي امارت مجاهدین یې په ناوړه نومونو یادول او د هغوی د له منځه وړلو لپاره یې خپل ټول پوځي، تخنیکي او تبلیغاتي وسائل کارول.

خو دا چې د اسلامي امارت داعیه برحق وه هماغه وه چې الله ورته د امریکا، ناټو او د هغوی د ایتلافیانو پر وړاندې د بریالي جهاد او مقاومت توان ورکړ او د همدې جهاد او سرښندنو برکت و چې له امریکایانو سره یې د اشغال د پایته رسیدو او جګړې د خاتمې سند لاسلیکولو امکانات شوني کړل.

د امریکایانو او اسلامي امارت ترمنځ تر ترون وړاندې امریکایانو په افغانستان کې شته واقعیتونه درک او د هغوی له مخې یې له اسلامي امارت سره له افغانستان څخه د خپلو ځواکونو د بیرته ایستلو ترون لاسلیک کړ.

که امریکایان په عملي لحاظ د دې ترون د محتویاتو پلي کولو ته ژمن پاتې شي زه هیله مند یم چې دلته د اشغال له امله راپیداشوې بې ثباتي، او جګړه به ورسره پای ته ورسیږي او افغانستان به د یوه ځواکمن مرکزي نظام په لرلو سره د ټولو افغانانو لپاره د امن او سوکالۍ په کور بدل شي. د هماغې ورځې د ژر رارسیدو په هیله

**پوښتنه: دکنفرانس په اوږدو کې مونږ لیدل چې کله به تاسي راښکاره شوي دخبریالانو به درباندي لوي مزاحمت اورش جوړ شو دهغوئ مهمي پوښتني او خبري سه وي او تا یې څو عمده پوښتني څه ډول ځواب کړي؟**

هو یقینا چې د ژورنالستانو له سختو پوښتنو سره تصادفي مخامخ شوم، په داسې حال کې چې ما له وړاندی تیاری هم نه و ورته نیولی ځکه زمونږ د مذاکراتي ټیم په مجلس کې په دې پریکړه وشوه چې څلور تنه به له مطبوعاتو سره غږیږي، د مجلس په اخر کې یو نظر دا هم وړاندي شو چې که کوم ملګری ځواب ویلو ته مجبور شو نو ځواب دي وواییي. نو دې ته په پام ما هیڅ دلچسپي نه درلوده چې له رسنیو سره مرکې وکړم اما ژورنالستانو به چې هرځای لیدلم یو هجوم به یی رابانـدی راوړ. نو د مجبوریت په اساس مې ځوابونه ورکړل د دوی زیاتره عمده سوالونه د روانې غونډې په اړه وو یا زما د شخصیت په اړه، د بیلګې په توګه دا سوال زما څخه ډیر وشو چی ایا دا ترون لاسلیک کول ستاسي لپاره بریا ده؟ ماهم اکثرو ته یو ځواب وایه چې هو، دا لاسلیک یوازي زمونږ لپاره بریا نه ده بلکې د هر هغه چا لپاره ممکن بری او د خوښۍ وړ خبره وي چې هغه امن او سولییز ژوند خوښوي هغه خلګ که د هر هیواد او د هرې عقیدی وی، دا لاسلیک هغه اشغال ته د پای ټکی بږدي چې د ټولو بدمرغیو سرچینه ده.

په موږ باندي جنګ تحمیل شوی دی زمونږ خاوره اشغال شوې ده او د اشغال په وړاندی زمونږ جنګ مقدس جهاد دی نن چی دا د ټولو ستونزو ستر لامل یعنی د اشغال وجود له منځه ځي دا زموږ د جهاد او قربانیو نتیجه ده، داچې موږ بالاخره د خپلو قربانیو نتیجه تر لاسه کوو دا زموږ لپاره ستره بریا ده.

د رسنیو استازو به زما په اړه راته ویل چې خلک له تا څخه ویریږي، تا دیو قاتل په توګه پیژني، ما به په ځواب کې ورته ویل چې دا زموږ د دښمنانو پلان شوي کارونه دي او ستاسی د رسنیو تبلیغات دي چی له یو معصوم انسان څخه بلا جوړه کړي، خلګ چې زموږ په اړه کوم منفي نظر لري د دوی ذهنونه او فکرونه د دښمن مطبوعاتو او تبلیغاتو تخدیر کړي دي، زموږ او د هغو ورونو تر منځ چې موږ ته دشک په سترګه ګوري، د دښمن تبلیغاتي دستګاو واټن ایجاد کړی دی، واقعیت دادی چې موږ هغه ډول نه یو څنګه چې نژدې ۱۸ کلونه رسنیو تعبیرولو، ما د امریکا غږ سره تفصیلي مرکه وکړه خو متاسفانه چې د بیان د تش په نوم ازادۍ دعوه دارانو د هغې د نشر اجازه ورنکړه، هلته ما هغه د همدې سوال په ځواب کې وویل چې زما عمر د ا مریکا د راتګ په ورځو کې ۷ کاله و، او د اسارت په وخت کې زه شل کلن وم نو ایا د بیان د ازادۍ معنا داده چې یو کم عمره او بې جرمه انسان ټولني ته د هغې د قاتل په صفت معرفي کړي؟ په حقیقت کې د بیان د ازادۍ تر نامه لاندي دښمنان سیاسي حربې پر مخ وړي خو زه په دې عقیده یم چې د خدای په فضل به د دوی په تزویرونو هیڅ ګټه هم مرتبه نشي ان شاء الله او دادی موږ او تاسو ددې خبرې شاهدان یو چې نړۍ ورو ورو له حقایقو خبریږي.

**پوښتنه: داسلامي امارت له بنده ازاد شوی استرلیایی استاد (تیموتی ویکس) هم دکنفرانس نه بهر ښکاره کیدو او تمه وه چې دټرون دلاسلیک هال ته به هم ورشي خوداسې ونشول کنفرانس کې شریک نسو علت یې سه وو او ربښتیا دټرون له لاسلیک ورسته به ممکن هغه تاسې لیدلي وي دټرون په اړه دنوموړي تاثرات او ارزونه سه وه؟**

ټیموتي ویکس (جبرایل) زما دوست او دیني ورور دی، نوموړی زموږ په بلنه یادي غونډي ته راغی ټول مذاکراتي ټیم په دې متفق شو چی هغه ته په غونډه کې د ګډون دعوت ور کړو ځکه هغه یو سوله خوښ سړی دی او یادي غونډې ته د راتګ خواهش لري، په همدې اساس ما هغه ته بلنه ورکړه، سره له دې چې هغه ناروغ هم و خو په ډیره خوشالۍ سره قطر ته راغی او زه د هغه د هرکلي لپاره هوایي ډګر ته ورغلم، یقینا زما او دده یوځای ښکاره کیدل ډیر د تعجب وړ و، دغه خبر چې په رسنیو کی خپور شو په امریکایانو یې بد تاثیر وکړ ددوی ددروغو تبلیغات په اوبو لاهو شول، نو په اخره ورځ یې دده مخنیوی وکړ د غونډې تالار ته یی پرینښود.

سخت خفه شو موږ هم انتهایي هڅه وکړه تر څو نوموړی په غونډه کې راسره ګډون وکړي خو بریالي نشوو، ده خپله د استرالیا د صدر اعظم له معاون سره تماس ونیو، هغه په دوحه کې د استرالیا سفیر د هوټل مخې ته ورته راولیږه، خو ددغو ټولو هڅو سره سره بیا هم امریکایانو اجازه ورنکړه، زه هم ډیر خفه وم ډیري دعاګاني مې ورته وکړې، بالاخره مي په دې قناعت وکړ چی کیدی شي په دې کې به یې خیر وي له غونډې وروسته ماښام مهال دده هوټل ته ورغلم ډیر غمجن ناست و زه هم دده په دې حالت ډیر خواشینی وم ډیره تسلی مي ورکړه بیا مې دا خبره ورته وکړه چې الله جل جلاله څو ځایه په قران کریم کې فرمایلي دي چې یو شی به تاسی بد ګڼی خو په هغه کی به خیر وي، کیدی شي په دې کې به زموږ خیر وي، بیا مې د خپل اسارت څو داسې د تکلیفونو کیسی ورته وکړې چې مخکې مي چاته نه وې کړې، د هغو تکلیفونو تر شا به لوی خیر مضمر و، ورروسته جبرایل هم ډیر مطمئن شو ویې ویل چې که ما ګډون پکې ونکړ هیڅ خبره نه ده مهمه داده چی دا لوی او مهم کار په خیر سرته ورسیدو او زه په دی متیقن یم چی په دې کی زما لپاره الله جل جلاله خیر ایښی و، ځکه اوس مې امریکایان نور هم سم وپیژندل اصل کې د سولې دښمنان همدوی دي، نوری هم ډیری خبری وشوې چې هغه به زه بیا په تفصیلی توګه په خپل کتاب کی راوړم ان شاء الله تعالی.

**پوښتنه: ښاغلی انس حقاني صاحب اوس هم زرګونه مجاهد اسیران دغلیم په منګلو کې دي له ترون ورسته هغو ته ستا پیغام اواطمنان سه ده او دترون په کیدا کې داتلو اسیرانو قرباني،دعاګاني او هیلي څومره بارزي ګڼې؟**

کوم اسیران ورونه چې د دښمن په زندانونو کې د مظلومیت شپې تیروي هغو ته وایم چې تاسي په هیڅ حالت کې د خدای څخه مه ناامیده کیږئ دا شپې به ژر تیریږی ان شاءالله تیر تاریخ خو له ډیرو مثالونو ډک دی خو تاسی لپاره په اوسنی زمانه کی زمونږ خلاصون یو ښه مثال دی، موږ په مرګ محکوم وو، دښمنانو هر نوع زور وواهه خو بیا هم ناکام شول الله تعالی موږ ته بندي دروازې راخلاصي کړې او په جګو سترګو راووتو.

دغه تړون هم ستاسي د قرباني،پایله ده تاسي به هم د خدای په فضل ژر تر ژره په عزت سره راوځئ د خبرو تاخیر او تقدیم سیاسی نزاکتونه دي خو په عموم کی دا کار په قانوني توګه فیصله شوی دی او ستاسو د خلاصون شرط ترټولو قوی شرط دی تر څو چی دا نه وی عملی شوی تر هغې مخکی تګ نشته. تاسی فقط خپل پروردګار ته متوجه شئ، د حکومتونو پالیسیو او سیاسی خبرو او داسی نورو ظاهری شیانو ته هیڅ توجه مه کوئ الله جل جلاله به من حیث لایحتسب لاري درته پرانیزي ان شاءالله.

زه په زندان کې دې حقیقت ته رسیدلی وم چی چاته الله جل جلاله د خیر اراده وکړي هغه شخص بندي کوي، خو نور په انسان پوری اړه لري چی هغه له دغه فرصته ښه استفاده کوي او کنه؟ هغه له دغه زرین فرصت نه د صبر او استقامت ستر او ناپایه اجرونه تر لاسه کوي او که خدای مه کړه بې صبري کوي.

زه په یقین سره درته وایم چې تاسې هغه خلک یاست چی الله جل جلاله د خیر اراده درته کړې ده، پاتي وخت هم په اذکارو عباداتو کی تیر کړئ د راتلونکی لپاره له خدای نه د نیکیو توفیق وغواړئ او دا دعا ډیره وایاست چی: ربنا لاتزغ قلوبنا بعد اذ هدیتنا وهب لنا من لدنک رحمة انک انت الوهاب.



# د شاهیکوټ د معرکې ۱۸ مه کلیزه




قاري مبارک ځاځی

له اوس څخه باندې اتلس کاله وړاندې هغـه مهـال چې امریکایي طاغوت د خپل فرعوني غرور په اوج او مـوج کـې و. په درسته نړۍ یې د باداری خوبونه لیدل او فکر یې کاوه چې د شوروي اتحاد له شکست وروسته امریکا یوازینی زبرځواک دی چې باید په نړۍ واک وچلوي.

امریکا له همدې فرعوني فکر سره د افغانستان پـه پاکـه خاوره یرغل وکړ. د اسلامي امارت سپیڅلی نظام یې ونړاوه او د غربي دموکراسۍ منحوس رژیم یې زموږ پـه وطـن او ولـس تحمیل کړ.

خو څرنګه چې افغانسـتان د امپراطوریـو قبرسـتان بلـل کیږي. د الله تعالی په نصرت سره یو ځل بیا د دې شـهیدپال هیواد له غرونو او درو څخـه د جهـادي قیـام ملکـوتي نعـرې راپورتـه شـوې او د صـلیبي اشـغال پـه وړانـدې د مقاومـت بیرغونه رپاند شول.

د امریکایي یرغل پر خلاف دجهادي قیـام پیـل د پکتیـا ولایـت د شـاهیکوټ لـه جهادپـالې درې څخـه وشـو. د ۱۳۸۰ هجري شمسي کال د حوت د میاشـتې پـه لسـمه نیټـه د اتـل قومندان شهید ملا سیف الرحمن منصور په مشرۍ یو شـمیر مجاهدینو د شاهیکوټ په دره کې د امریکـایي اشـغالګرو پـر خلاف جهادي قیام وکړ. اشغالګرو امریکایـانو پـه ډیـر قـوت سره په شاهیکوټ برید وکړ چې ورسره هغـه تـاریخي معرکـه پیل شوه، چې زموږ د اتلس کلـن جهـاد پیلامـه او زریـن بـاب ګڼل کیږي.

د شـاهیکوټ معرکـه داسـې مهـال تـرسره شـوه چـې امریکایي یرغـل د قـوت پـه حـال کـې و. د امریکـایي جنګـي ټکنـالوژۍ، تبلیغـاتو او ځـو اړخیـز جنـګ او تهـاجم لـه املـه عمومي مـورال ځپـل شـوی او روحیـات د نهایـت ضـعف پـه حالت کې و. خو دا بـه د دې معرکـې پـه اتلـو مجاهـدینو پـه خاص ډول شـهید مـلا سـیف الـرحمن منصـور بانـدې د الله تعالی ځانګړې مرحمت او نصرت و چې په سخت وخـت کـې یې د قیام او ثبات توفیق ورکړ. هغوی د صلیبي یرغل د توپان په وړاندې په پـوره میړانـه او هسـکه غـاړه ودریـدل. د غـرب دجالي تخنیک او وسلو یې عزم متزلـزل نکـړ، بلکـې پـه پـوره متانت یې پـه تـش لاس او لـوړ عـزم د یرغلګـرو پـه خـلاف د جهادي قیام غږ پورته کړ.

د شاهیکوټ معرکه زمـوږ پـه جهـادي تـاریخ کـې ځکـه ځـانګړی ځـای لـري چـې پـه دې سره د مجاهـدینو لویـدلي روحیات راژوندي شول. د ولس په مړاوو رګونو کې د جهـادي پاڅون وینه په غورځنګ شوه او یو ځل بیا دا خبره ثابتـه شـوه چې دښمن که هـر څـومره مجهـز او ځـواکمن وي مجاهـدین کولای شي دالهي نصرت په برکت ورسره مقابله وکړي.

د شاهيکوټ له معرکې وروسته د هیواد په لراوبر کې د اشغالګرو په خلاف جهادي قیام زور واخیست او دا دی اتلس کاله وروسته موږ وینو چې د زرګونو شهیدانو د قربانیو په برکت نور هغه امریکا د غرور له موقف څخه رانسکوره شوې ده چې یو وخت نه ماتیدونکی ابرقدرت ګڼل کیده. یو عجیب حسن تصادف دا دی چې د شاهیکوټ معرکه هم د حوت د میاشتې په لسمه نیټه پیل شوې وه او څو ورځې وړاندې د امریکایي اشغال د خاتمې توافق هم د حوت په لسمه امضاء شو.

د افغانستان اسلامي امارت تر مشرۍ لاندې د منصور صاحب محاذ مجاهدینو تیرې پنج شنبې په ورځ په د پورته دواړو سترو تاریخي مناسبتونو په ارتباط غونډه جوړه کړې وه. په دې مجلس کې د اتلس کلن جهاد په جریان کې د منصور صاحب د محاذ د شاوخوا دوه زره (۲۰۰۰) شهیدانو د فاتحې مراسم دغه د افغانستان اسلامي امارت له لوړي د افغانستان د ازادۍ د ترون د لاسلیک په مناسبت لومړی د روان کال دحوت په ۲۸ ماښام د مشاعرې ستره غونډه تر سره شوه، يادې جلسې ته سلګونه، علماء کرام د هیواد نومیالي شاعران، مشهور ترانه ویونکي، د شهیدانو وارثان او د دین او جهاد زرګونه شایقین راغلي.

د شپې ناسته چې ټول وخت یې مشاعرې ته ځانګړی شوی ؤ د قرآن کریم په مبارکو ایتونو پیل شوه. مشهور حماسي شاعر مولوي اکرام الدین مفتون په زړه پورې شعرونه وویل، ور پسې څو تنو مشهورو ترانه ویونکو ترانې وړاندې کړې، همدا ډول مشهور شاعر او لیکوال چینار ټکور څو شعرونه واورول، چې د جلسې د ګډونوالو د زیاتې خوښۍ او ستاینې وړ هم وګرځېدل ...او مشاعرې ته ځانګړې شوې ناسته د شیخ الحدیث مولانا ثمرګل مجاهد په دعاء پای ته ورسېده.

صبا ورځ د جلسې اصلي غونډه د مشهور خوږ ژبي قاري محمد اسماعیل په تلاوت پیل شوه، د شهیدانو روح ته دعاء وشوه، پخواني ترانه ویونکي محترم خیال بادشاه صادق نعتیه کلام وړاندې کړ، ور پسې د افغانستان اسلامي امارت د خوست ولایت مسؤل مولوي عبدالله حسیني مختار عالمانه وینا وړاندې کړه، چې یې د ستر جهادي شخصیت اتل قومندان ملا سیف الرحمن منصور تقبله الله په کار نامو او قهرمانیو رڼا واچوله او زیاته یې کړه چې تاریخ به د داسې مېړنیو کارنامې په خپلو زرینو بابونو کې ولیکي. ور پسې د جهاد د رهبر شهید مولوي نصرالله منصور رحمه الله خصوصي شاګرد، سیاسي او دیني عالم مولوي شجاع الدین وینا وکړه، د شهیدانو فضیلت یې بیان کړ او د جهاد د فرضیت او ضرورت په اړه یې هر اړخیزه وینا وکړه. ورپسې پیاوړي او غښتلي عالم، جهادي شخصیت شیخ الحدیث عبد السمیع صاحب د شاهي کوټ د معرکې په ماهیت او ارزښت هر اړخیزه وینا وکړه.

او همدا ډول جلسه د سترو دیني عالمانو لکه هر یو شیخ الحدیث حضرت جناب معلم جان حنفي صاحب، شیخ الحدیث مولانا افضل حسین حسیني صاحب، شیخ الحدیث مولانا طالب جان ادیب صاحب، شیخ الحدیث مولانا لطف الرحمن حنیف صاحب، شیخ الحدیث حضرت مولانا عزیز الرحمن منصور صاحب په وینا وو دوام وکړ ... چې په ترځ کې یې د اسلامي امارت تر مشرۍ لاندې د اشغالګرو په خلاف د اتلس کلن جهاد په کارنامو رڼا واچوله او د شهیدانو روح ته یې دعا وړاندې کړه.

د جلسې په ترځ کې د اتل قومندان شهید ملا سیف الرحمن منصور تقبله الله د برکت جهادي خدمت او عظمت پګړۍ د محترم شهید کشر- ورور الحاج ملا عبد الرحمن منصور صاحب ته د دیني او علمي شخصیت، مولوي صاحب عارف الله عارف، جناب قاضي عبد العزیز صاحب، د منصور صاحب د کورنۍ او لسګونو علماء کرام او مجاهدینو له لوري ور په سر کړل شوه.

د جلسې د پای په شېبو کې د ستر جهادي شخصیت مرحوم الحاج مولوي جلال الدین حقاني رح ورور الحاج خلیل الرحمن حقاني صاحب وینا وکړه، د اتل قومندان شهید ملا سیف الرحمن منصور ژوند او کارنامې یې بیان کړې او د شاهي کوټ تاریخي معرکه یې د اسلامي امت لپاره د صلیب په وړاندې د جهاد پیلامه وبلله. په پای کې شیخ الحدیث حضرت مولانا افضل حسین حسیني صاحب دعاء وکړه، او په دې سره د افتخار او ویاړه دغه ناسته پای ته ورسېده.

## درهبري شورا او مذاکراتي کميټي غړی او د ملکي تلفاتو کميسون مشر ښاغلی

# مولوي عبدالمنان عمري:

**کله چې د هوکړې متن لاسليک کيده ماته په همدې لحظه کې د اسلامي امارت دمؤسس امير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله هغه خبرې را يادې شوې چې شل کاله وړاندې يې امريکايانو ته د لانجې د هواري په غرض د يوه دغسي تفاهم سپارښتنه کړې وه**

**د اسلامي امارت د مذاکراتي کميټې او رهبري شورا غړی او د ملکي تلفاتو د مخنيوي کميسون مسؤل محترم الحاج ملا عبدالمنان عمري صاحب**

**تاسې د کب په ۱۰ نيټه د قطر په مرکز دوحه کې له امريکايانو سره د اشغال د خاتمې د تړون لاسليکولو په تاريخي مراسمو کې حاضر وی، که لطف وکړی دهغو ويارمنو شيبو په باب خپل تاثرات راسره شريک کړئ؟**

**ځواب:** واقعا چې د اسلامي امارت او امريکا ترمنځ د جګړې د خاتمې او د سولې د تړون د لاسليکولو شيبې له وياړ او وقار نه ډکې شيبې وې.

په تيره هغه مهال چې د اسلامي امارت سياسي مرستيال محترم ملا برادر اخوند د امريکايي مرکچې پلاوي مشر زلمي خليل زاد سره د هوکړې متن لاسليک کاوه ماته په همدې لحظه کې د اسلامي امارت د تأسيسي مشر امير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله هغه خبرې را يادې شوې چې شل کاله وړاندې يې امريکايانو ته د لانجې د هواري په غرض د يوه دغسي تفاهم سپارښتنه کوله.

که هماغه مهال د امريکا د متحده ايالاتو لخوا د ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله هماغه حکيمانه سپارښتنې منل شوې واى ، نه به د امريکا لخوا د افغانستان د اشغال ضروت پيښيده، نه به افغانستان ورانيده او نه به د اشغال له امله خواشا دری زره امريکايان د افغانانو د مقاومت په ترڅ کې وژل کيدل.

**پوښتنه: جناب عمري صاحب !**

**د اسلامي امارت او امريکا ترمنځ د هوکړې تطبيقي اړخ ته څومره خوشبين ياستئ؟**

**ځواب:** د طرفينو لخوا له يوه کلن سترې مذاکرتي بهير وروسته همدا هوکړه ليک يو ښه چانس دی چې په افغانستان کې يوې دائمې سولې ته د رسيدو لپاره تري کار په خپل وخت موثره استفاده وشي.

په هوکړه ليک کې د جانبينو په توافق هرڅه واضح او پرعواقبو يې ډيرغور شوی دی.

اسلامي امارت خو له خپل لوري د هوکړې عملي کولو ته بشپړ تعهد لري، مقابل لوری هم څرنګه چې د همدې هوکړې د عملي کولو تعهد يې کړی بايد چې د خپل تعهد له مخې د هوکړې پلي کولو ته خپله ژمنتيا وښيي.

**پوښتنه: د اسلامي امارت او امريکا ترمنځ د ترسره شوې هوکړې په وساطت کې د قطر هيواد رول څومره اغيزمن ګڼئ؟**

**ځواب :** د اسلامي امارت او امريکا د متحده ايالاتو ترمنځ د قطر او همدا راز د افغانستان د ګاونډيو هيوادنو رول مثبت او په عين حال کې موثر رول دی.

ځکه قطرهيواد د سيمې په کچه د ډيرو همداسې لانجه منو قضاياوو په هواري کې عملي سهم لرلی او د دوی په منځه ګړيتوب ډيرې همداسې لانجې هوارې سوې.




د اسلامي امارت د مؤسس اميرالمؤمنين ملامحمد عمر (مجاهد) لخوا د افغانستان په قضيه کې د منځګړيتوب لپاره د قطر هيواد انتخاب هم له همدې امله شوی دی.

همدا د قطري چارواکو هلې ځلې وې چې دا مذاکراتي تړون يې د لاسليک کيدو ته مرحلې ته ورساوه ، د بعدي پړاوونو په عملي کيدو کې هم ورځخه د ورته مثبت او موثر رول هيله کيږي.

**پوښتنه: د هوکړې د لاسليکولو مراسمو ته په نړيوالو ناظرينو او ديپلوماتيکو شخصيتونو سربيره د اسلامي امارت يو شمير لوړپوړي پوځي چارواکي او سياسي شخصيتونه هم وربلل شوي وو چې تاسو هم په هغه جمله کې وئ!**

له همدغو بلل شويو کسانو سره د قطري چارواکو تعامل څه ډول و؟

**ځواب:** د دغې تاريخي هوکړې د لاسليک کيدومراسمو ته له بلل شويو کسانو سره د قطري چارواکو تعامل ډير مثبت اود تقدير وړ و.

هغه څه چې شخصا لما سره يې په دې اړه کوم د احترام

وړتعامل کړی زه به تل تري ممنون يم.

زه چې کله د خپلو نورو دريو ملګرو په ملتيا د فبروري په ۲۸ مه نيټه د غرمې په يولس بجې د دوحې نړيوال هوايي دګر ته ورسيدم ، له الوتکې څخه له ښکته کيدو سره سم د قطرهيواد د بهرنيو چارو وزارت د تشريفاتو منسوبين له يوې ځانګړې لوحې سره چې زما نوم وربandې ليکلی و زمونږ ښه راغلاست ته ولاړ او زما د نوم تر پوښتلو وروسته يې زه او راسره ملګري د بهرنيو سياسي وفدونود استقبال سالون ته رهنمايي کړو.

هلته يې د رسمي پروتکول له مخې زمونږ د وررسيدو مراحل له طي کولو وروسته د بهرنيو چارو وزارت اړوند د لوړپوړو بهرنيو ميلمنو په ځانګړيو تشريفاتي نقليه وسائطو کې چې د ځانګړيو امنيتي محافظينو لخوا بدرګه کيدو په دوحه ښار کې د بين المللي کانفرانسونومشهورهوټل شيراټون ته ورسولو.

په هوټل کې د اوسيدنې په مهال يې هم زمونږ اقامتګاه ته ځانګړي محافظين توظيف کړي چې څلور ويشت ساعته به زمونږ د استوګنځي محافظت په پام کې و.

چې له دې امله زه د قطر هيواد د چارواکو له همدې اخلاقي تعامل څخه مننډوي يم.

اصلا د اسلامي امارت او امريکا ترمنځ د جګړې د خاتمې او سولې د ټينګښت دغه تاريخي هوکړه ليک ټول د افغان ولس د بې ساري سرښندونو له برکته تر سره شو.

ما چې کله د قطري چارواکو لخوا زمونږ همدا ډول د رسمي پروتوکول له مخې د ښه راغلاست مراسم وليدل ، سمدستي مې د ذهن په حافظه کې د جهاد د شهيدانو، زخميانو او مظلومو بنديانو هغه ټول زحمتونه او تکاليف را تير شول کوم چې دوی د تير اتلس کلن جهاد په جريان کې د جهاد او سرښندنې په سنګرونو کې تر سره کړي.

لوی خدای دي وکړي چې د شهيدانو، زخميانو او محبوسينو د همدغو بيدريغه قربانيو په نتيجه کې نور زمونږ مظلوم هيواد د اشغال له شره خلاص او په هيواد کې مو يوه داسې اسلامي نظام حاکم کړي چې ټول هيواد وال يې تر شرعي سيوري لاندې د امن او سوکالۍ له ژونده برخمن شي.

اللهم امين، و ما ذالک على الله بعزيز



# د کابل اداري عسکر دې پر ځان رحم وکړي!

ابو احسان

شیطان یا د هغه لاروي کافران تل د خپل زاړه عادت له مخې، خپل ماتحت او غلام وګړي هغه وخت پر میدان د ایمان غشو ته تنها پرېږدي کله چې هغوی نه د خپل پلیت هدف په لاره کې کار واخلي، دا نو څه یوه او نوې پېښه نه ده، بلکې ۱۴ سوه کاله وړاندې کله چې د بدر په میدان د دوی سرخیل (شیطان) خپل ملګري (ابو جهل او د هغه لښکر) په سپین میدان د تورو خرپ ته تنها پرېښودل او په منډه منډه وتښتید له هغې تاریخي ورځې تر نن پورې دوی هر وخت او په هر میدان کې خپل ملګري او غلامان تنها د ملتونو محاسبې ته پرېږدي.

د کافر دوستي نه وخت لري او نه اینده لري، ځوک چې کافر ته د دوستۍ لاس غځوي هغوی خپل راتلونکی تخریبوي، او ځان د خسر الدنیا والاخره سترې مرګونې کندې ته غورځوي.

الله تعالی د کافر د دوستۍ او سرپرستۍ په هکله خپلو بندګانو ته داسې فرمايي:

مَثَلُ الَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ أَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ الْعَنكَبُوتِ اتَّخَذَتْ بَيْتًا وَإِنَّ أَوْهَنَ الْبُيُوتِ لَبَيْتُ الْعَنكَبُوتِ ۖ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ.

ژباړه: کومو کسانو چې له الله څخه پرته نور سرپرستان نیولي دي، د هغو مثال د غڼې په څیر دی چې خپل ځان ته یو کور جوړوي. او له ټولو کورونو څخه ډېر کمزوری کور د غڼو کور وي. کاشکي دغو خلکو علم درلودلای.

همدارنګه بل ځای کې فرمايي: وَلَن تَرْضَى عَنكَ الْيَهُودُ وَلاَ النَّصَارَى حَتَّى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ (البقره: ۱۲۰).

ژباړه: او له تا نه خو به هیڅکله نه یهودیان راضي شي، او نه نصرانیان، تر دې چې ته د دوی د دین پیروي وکړې.

کافر نه هیڅ اصول پېژني او نه د کافر قاموس کې د وفا او خواخوږي په نوم کوم څه وجود لري، هغه د چا خبره ډېر یې تر اوبو تېرې تېر کړل او ډېرو ته یې لاس له دنیا او آخرت نه ور وکښل، افغانستان ته چې کله امریکا له خورا جم اوش سره راغله، ډېر ببر او مخور یې د ببرو ډالرو په لالچ لغړې کړل او ډېرو هغو ډېرورو چې د چوکۍ او دولت افراطي مینې د امریکا او کافرې نړۍ له تاریخ لوستلو ړانده کړې وو، ورته خپل مخونه کلین شیپ او مبارکې ږیرې کلې کړلې.

ډېر ورته له خپل فرهنګ او عنعناتو تېر شول، ډېرو د دوی په خوښه د خپل افغان ورور پر سینه امریکايي ګولۍ ورسیخې کړې او د خپل هیواد تخریب ته یې شپه او ورځ یوه کړه، ګن کورنه یې ړنګ کړل او زیات ارزښتونه او مقدسات یې په شهادت ورسول. دا ځکه چې دوی ته د امریکا بې باوره ډالري چینه د آب حیات غوندې ښکارېدله او د دوی په فکر چې نور نو دوی او چرچې ځوک نه شي سره بېلولای.

خو کله چې د افغان مجاهد اولس مقاومت ورځ تر بلې د ظلمي توب پر خوا قدم واخه امریکا او ورسره اشربانې یې هم ورو ورو د شکست او زوال له برخلیک او د زر او زور له کمبود سره مخ کېدل، تر دې چې د نړۍ په مخکې یې د افغان ملت زور ته سر خم کړ او د خپل ناولي إشغال خاتمه یې حتمي کړه، لرې نه ده چې کافره نړۍ به نور خپل غلامان د ذلالت په خوب ویده د ملت محاسبې ته پرېږدي او دوی به دوې پښې خپلې کړي او دوې به نورې کړي او د امپراطوریو له دې قبرستان نه به ځانونه په منډه وباسي.

اوس چې د کافر د تلو او د غلامانو د یتم شپې دي موږ د کابل إدارې پر هغه غولېدیو عسکرو ږغ کوو کوم چې پر یوه بې باوره تنخوا او لږو روپیو یې خپل ضمیر، خاوره او وجدان پلورلي: تر څو د إسلامي إمارت له ستر ترحم او عمومي عفوې نه گټه واخلي، نور دي د توکل پر امریکا تر شعار او نظریې تېر شي، نور دي پر خپل ځان، کورنۍ او اولاد رحم وکړي، اَلـلّـه (ﷻ) ورته د صحت، عقل او ژوند ستره سرمایه ورکړې، د ژوند، ځوانۍ او صحت حق دا نه دی چې د اَلـلّـه (ﷻ) په دښمنۍ کې صرف شي بلکې د دې سترو نعمتونو حق هلته اداء کېږي چې د اَلـلّـه (ﷻ) د رضا د حصول او د دین د ساتنې په لاره کې تېر او قربان شي. دوی شل کاله د پردیو تر څنگ د پلیتې دیمکراسي د ترویج لپاره ډار او دردونه وگالل خو اخیر نتېجه یې دا شوه چې بادار یې بستره گولوي او دوی وچ حلق د خپل عمل سزا ته پرېږدي؛ لکه څنگه چې تېره ورځ ۲۰۲۰/۳/۲۴ د امریکا د بهرنیو چارو وزیر پمپیو وربانډې د غوږې کولې د بندولو گواښ وکړ همداسې به د وخت په تېرېدلو سره ورو ورو نور هم بې ملگرو او بې ډالرو شي.

اوس هم وخت په لاس کې لري او له شته فرصت نه په إستفاده باید د ځان آینده جوړه کړي او ځان وربانډې دا حق لري چې نور یې د هلاکت له کندې او د تاریخ له تل پاتي پېغور نه وژغوري او د واقعي مسلمان او افغان ورونو تر څنگ إسلامي نظام او یوه ارام افغانستان لپاره کار وکوي.

## په خواله رسنیو کې دخلکو پوښتنو ته د ذبیح الله مجاهد ځوابونو لنډیز:

- امریکایانو موږ ته اطمینان راکړئ چې زندانیان به خلاصیږي، هغوی اوس د دوه حکومتونو په کشمکش او جنجال کې مصروف دي. موږ انتظار ورته کوو.
- بندیان موږ د کابل له ادارې څخه ندي غوښتي او نه یې ترې غواړو.
- دا ژمنه امریکایانو کړې او هغوی به یې راخلاصوي.
- د داعش پر خلاف جگړه د افغانانو خپل ضرورت دی، د امریکایانو سره په دې اړه هیڅ توافق یا مشترک عملیاتو خبره نسته.. موږ به داعش ته هیڅ کله په هیواد کې اجازه ورنه کړو..
- د امریکایانو سره توافقنامې هیڅ معلومات پټ نه دي ساتل سوي، امریکایان غواړي چې هغه طرز العملونه پټ وساتي چې دوی یې د ځان لپاره محرم بولي..
- هغه چې پټ ساتل سوي، هغه د امریکایانو خپل ضرورت دی چې دوی به کله کومه قرارگاه پریږدي او په څومره مقدار وغیره.. امنیتي اړخونه
- د سولې وروسته اماده یو چې په حقوق العباد کې جوابده واوسو او هم نور وپوښتو.
- د توافقنامې پر اساس طالبان نه خپل ځان او نه هم بل چاته اجازه ورکوي چې د افغانستان څخه بهرنیو هیوادونو ته ضرر ورسوي..
- القاعده تنظیم پخوا افغانستان کې ډیرحضور د میلمنو په حیث درلود، خو د اشغال وروسته القاعده والا د افغانستان څخه وتلي. خپلو هیوادونو کې اوس په مبارزه اخته دي.
- اشرف غني او په حکومت کې چې هر څوک دي، موږ یې د افغان په حیث پیژنو او خبرو ته ورسره اماده یو..
- د حکومت او نظام په حیثیت یې نه منو..
- موږ غواړو چې د شخړو حل په خبرو وسي نه په جگړه.. او که جگړې ته اړ کړل سو، نو بیا خو مجبور یو.

## د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسون مشر

# او د امارت ویندوی ښاغلی ذبیح الله مجاهد

**فرهنګي ملګرو په څه ډول چې روان جهاد په نړیواله سطحه منعکس کړ او د اسلامي امارت دواحد صف او دریځ په ځلولو کې یې تلپاتې کردار درلود اوس باید د ترون په ساتلو او مثبت ارزولو کې حیاتي رول ولوبوي، ځکه دا ترون دافغانانوپه ګټه اوزمونږ د داعیي تائید کوي.**

**پوښتنه داسلامي امارت او امریکایانو ترمنځ دکب په لسمه نیټه دترون داهمیت اوارزښت په اړه ستاسې تاثرات ترلاسه کول غواړو چې دنوموړي ترون په ترڅ کې افغان مجاهد ولس څه ترلاسه کړل او اسلامي امارت په جهادي، سیاسي اونړیوال میدان کې کومې لاسته راوړنې درلودې؟**

**او که امریکایان له افغانستان څخه دهمدغه ترون په ترڅ کې ووځي دغه کار ستاسې په اند سیمي اوګاونډ ته څومره په ګټه او خیر ده؟**

**ځواب:** بسم الله الرحمن الرحیم، حامدا ومصلیا امابعد:

که واقعا امریکایي لوری لکه څرنګه یې چې له اسلامي امارت سره په ترون کې توافق کړی د ۱۴ میاشتو په ترڅ کې له افغانستان څخه ووځي، دا کار هم د سیمې، هم د افغانستان او هم د امریکا لپاره ستره ګټه لري او یو چانس یې بللی شو.

**الف:** د افغانستان لپاره یې مهم ګام بللی شو، ځکه روانه شل کلنه مبارزه او جهاد د همدې لپاره وو چې د افغانستان خاوره په ناجایز ډول، په زور سره د امریکا لخوا تر اشغال لاندې وه، دلته یې د اسلامي نظام، سولې او امن مخه ډب کړې وه، کله چې اشغالګر قوتونه له افغانستان څخه وځي، ښکاره ده چې افغانان یوځل بیا د استقلال خاوندان کیږي، پخپله د خپل راتلونکي په اړه مستقلانه پریکړې کولای شي او د سوچه اسلامي نظام تر چتر لاندې به د خپل ویجاړ هیواد آبادۍ ته فرصت پیداکړي. ان شاءالله

**ب:** د سیمې لپاره ځکه په خیر ده چې په افغانستان کې له امریکایي شتون څخه د سیمې هیوادونه د مختلفو دلائلو په اساس نا راحته وو، روسانو په افغانستان کې د امریکا شتون د خپلو او متحدینو د منافعو پرخلاف باله، ایران خو له امریکا سره په ښکاره دښمنۍ اخته ده، همدا ډول د چین هیواد هم چې اقتصاد یې مخ په وده ده او په عین حال کې له امریکا سره په ډیرو اقتصادي برخو کې مشکلات لري، هم د امریکایي ځواکونو له شتون څخه اندیښمن و.

خو په لومړیو کې یادو ټولو جهتونو نه غوښتل چې له امریکا سره په جګړه کې ښکیل شي، نو یې ښکاره څه نه ویل، خو کله چې د افغانستان خلکو مقاومت وښود، د اسلامي امارت تر چتر لاندې یې د جهاد قوت، د مبارزې حجم او وړتیا ولیده، نو ټولو اړخونو په یوډول نه په یو ډول په سیمه کې د امریکایي موجودیت مخالف غږونه پورته کړل.

کله چې امریکایي اشغال پای ته رسیږي د سیمې هیوادونه پخپلو کې تعاملاتو، همکاریو، او مشترکې اقتصادي ودې ته توجه زیاتوي چې دا کار د افغانستان او ټولې سیمې په ګټه ده.

د مثال په ډول د ټاپي پروژه سره له دې چې د ترکمنستان، پاکستان او هندوستان لخوا يې په کارونو خنډ وجود نه لري، مګر په افغانستان کې د امريکايي شتون او جګړې له امله پرمختګ نشي کولای، همدا ډول د منځنۍ آسيا د کاسا زر په نامه پروژه ناتکميله ولاړه ده، د چين د يو کمربند يوې لارې پروژه د افغانستان په خاوره کې له مشکلاتو سره مخ کيږي، نو دا لوړ سيميز اقتصادي هدفونه په افغانستان کې د اشغال د خاتمې او امن د راتګ لارې څارې، اوس کله چې د اسلامي امارت او امريکا ترمنځ توافقنامه لکه څرنګه چې ښايي هغسې عملي شي، بې له شکه د ټولې سيمې په خير ده.

**ج:** له افغانستان څخه د امريکا يي ځواکونو وتل پخپله د امريکا لپاره هم ستره ګټه ده، موږ تاسو يې محسوسوو چې مطلق اکثريت امريکايي ملت په افغانستان کې د امريکايي ځواکونو له شتون او جګړې سره مخالف دی، همدا ډول د امريکا اقتصاد هره ورځ د خرابيدو په حال کې دی، د جګړې اوږدوالي هم د امريکايي نظاميانو زړونه وهلي دي، د ناټو، امريکا او اروپا ترمنځ هم د افغانستان د جګړې د تمويل په سر مشکلات پريمانه دي، نو داچې سبا هسې هم امريکا ماتې خوري او بيا په نظامي شکل تښتي، نو اوس خورا ښه چانس په لاس ورغلی چې له فرصته ګټه واخلي او د توافقنامې په اساس د افغانستان اشغال او خپله دا اوږده جګړه پای ته ورسوي.

**پوښتنه:** مجاهد صاحب داچې امريکايان له خپلې ټولې خودخواهۍ او تکبر سره سره ديته حاضرشول چې داشغال دخاتمې ترون لاسليک کړي، دنظامي ميدان داتلانو قرباني اودسياسي برخي دځيرکو ملګرو ستوماني خو اظهر من الشمس دی، دا راته ووايې چې دامارت د ميډيا او مجاهدو قلموالو او فرهنګي ملګرو کردار او رول په دې برخه کې څومره بارز، کليدي او موثر و؟

**ځواب:** بې له شکه چې د امريکايي اشغال او بيا د دغسې توافقنامې پورې د رسيدو پورې زموږ د مؤمن ملت ټولو اقشارو خپل خپل مسئوليتونه ادا کړي، نظامي ملګرو د سر او مال سترې قربانۍ ورکړې، ملت مو هم د جهاد سره د همکارۍ په لاره کې سترې قربانۍ ورکړې، مشرانو او مسئولينو مو په دې لاره کې شهادتونه، بندونه، ستړياوې، هجرتونه او نور تکاليف قبول کړل، سياسي ملګرو مو هم الحمدلله په دې لاره کې سخت استقامت وکړ، ډيره ځيرکتيا او وړتيا يې له ځانه وښوده او د سياسي استدلال په ډګر کې تاريخي کارنامې پريښودې.

خو په ځانګړي ډول د فرهنګي ملګرو کارګردۍ هم له هيچا پټه نه ده، داچې روان جهاد په نړيوال سطحه انعکاس وموند د فرهنګي ملګرو د هلو ځلو، خواريو او تکاليفو نتيجه وه.



هسې ستاسو د معلوماتو لپاره دومره ويلی شم چې په امريکايي لوري کې داسې ذهنيت موجود وو چې ګواکې د اسلامي امارت سياسي کميسيون او مشرتابه سره يوه خوله نه دي او ګواکې د سياسي کميسيون خبرې، نظريات، ژمنې او وعدې د مشرتابه په استازولۍ نه دي، اګرکه په واقعيت کې داسې نه ووخو امريکايانو همداسې يو غلط برداشت درلود.

کله چې فرهنګي کميسيون دا خلا محسوس کړه، په ډيره جدي او پرلپسې توګه يې کوښښونه پيل کړل چې امريکايانو ته ثابته کړي چې د اسلامي امارت د سياسي دفتر ژمنې او تصاميم عين د مشرتابه تصاميم دي.

په دې لاره کې پرمختګ وشو او د مذاکراتو رسمي پيل ته زمينه مساعده شوه، وروسته د مذاکراتو په جريان کې، بيا د توافقنامې په لاسليک کې ان شاءالله د فرهنګي ملګرو خدمات خورا ښکاره وو، زموږ ليکوالو او نورو مبارزو ملګرو په دې موده کې د ليکنو، نشراتو، مرکو او نورو هلو ځلو له لارې سعيه وکړه چې ذهنيتونه جوړ وساتو ترڅو پروسه بريالي پرمخ لاړه شي چې ان شاءالله په کې بريالي شوو، دا بريا د ټول اسلامي امارت او بيا په ټوله کې زموږ د مظلوم اومجاهد ولس بريا وه. الحمدلله والمنة



# مولوی عبدالسلام حنیفی، معاون دفتر سیاسی و عضو کمیتهٔ مذاکراتی امارت اسلامی افغانستان:

**موافقـــتنامه دوحــه بــرای منطقــه وفرامنطقــه مهــم اســت بخاطریکــه موجودیــت نیروهــای‌خــارجی در افغانســتان باعــث تشــویش همســایگان وقدرت های منطقوی گردیده سبب مداخله آنها میشد، بناء ایـن توافقنامـه از اهمیت منطقوی وفرامنطقوی نیز دارا میباشد**

سوال: پیمان پایان اشغال، که به تاریخ دهم حوت ۱۳۹۸ در دوحه امضا شد، از نگاه شما چقدر اعتبار و ارزش تاریخی دارد و چه دستاوردهای در عرصه سیاسی برای امارت اسلامی خواهد داشت؟

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم وعلی آله وصحبه اجمعین، امابعد اولا این پیمان تاریخی را بر امیرالمؤمنین جناب شیخ صاحب هبة الله آخندزاده حفظه الله، معاونین امارت اسلامی، شورای رهبری، مسؤلین ومجاهدین امارت اسلامی وبرکافه ملت شهیدپرور افغانستان ازصمیم قلب تبریک میگویم، الله متعال در نتیجه این پیمان یک نظام اسلامی وصلح سرتاسری را برای ملت رنجدیده افغانستان نصیب بگرداند، درپاسخ به سوال شما باید گفت که این پیمان یقینا یک پیمان تاریخی برای امارت اسلامی افغانستان بوده حیثیت واعتبار بین المللی دارد، برای تان معلوم استکه بعداز هژده سال جنگ ایالات متحده امریکا وناتو آماده شدند که موضوع را ازطریق دپلوماسی حل نمایند پالیسی امارت اسلامی ازاول همین بود که باید موضوع از طریق دپلوماسی حل وفصل شود، درتاریخ منازعات افغانستان این اولین بار است که خود افغانها درحل آن بدون مداخله کدام جهت خارجی تصمیم میگیرند واقعا تصمیم عاقلانه، منطقی وقابل افتخار است واین پیمان که بحضور داشت نه وزراء خارجه، نماینده گان بیست نه کشور وسازمانهای بین المللی وسفراء تخمینا صد کشور جهان به امضاء رسید وبعدا هم از طرف شورای امنیت سازمان ملل متحد تایید شد حیثیت یک قانون را گرفت وارزش حقوقی نیز پیدا کرد، قابل تذکر استکه این موافقتنامه تاریخی، ملی وبین المللی یک دست آورد تاریخی وبزرگ برای امارت اسلامی افغانستان بوده وبرای همه ملت مظلوم افغانستان مایه افتخار است.

سوال: این پیمان که با استقبال گسترده جهانی رو برو شد، چه پیامدهای برای مردم افغانستان، منطقه و جهان خواهد داشت؟



پیامد تاکتیکی این توافقنامه برای مردم افغانستان انخلاء کامل همه نیروهای خارجی از افغانستان خواهد بود وپیامد استراتیژیک این موافقتنامه صلح سرتاسری، عدالت اجتماعی وقیام نظام اسلامی بر سرزمین افغانستان خواهد بودواهمیت این موافقتنامه برای همه منطقه وفرامنطقه مهم است بخاطریکه موجودیت نیروهای خارجی در افغانستان باعث تشویش همسایگان وقدرت های منطقوی گردیده سبب مداخله آنها میشد، بناء این توافقنامه از اهمیت منطقوی وفرامنطقوی نیز دارا میباشد وباعث ختم نزاع وکشمکش های منطقوی خواهد شد.

سوال: شما از آغاز تا اخیر در سایر مراحل مذاکراتی حضور فعال داشتید، از دید شما آن کدام نکات و یا به اصطلاح خط های قرمزی بود، که بر آن امارت اسلامی اصرار داشت و یا امریکایی ها پافشاری می کردند؟

بلی بنده بحیث یک عضو تیم مذاکراتی در اکثر مراحل مذاکرات شرکت داشتم برایتان بهتر معلوم استکه درمذاکرات خوامخواه شما چیزی را میگیرید وچیزی را میدهید، ومذاکرات کامیاب آنستکه براساس برد برد باشد نه براساس برد وباخت وگر نه تداوم پیدا نمیکنند، درجریان مذاکرات واقعا تیم هر دو جانب سخت میکوشید تازیادترچیزی را بدست بیاورد وکمترچیزی را به جانب مقابل بدهد، وبه شکل عموم هرهر کلمه موافقتنامه برای هردو جانب مهم بود بعضی وقتها ما برسر یک کلمه چندین روز باهم جروبحث داشتیم بازهم بشکل خاص برای ما انخلاء کامل نیروهای خارجی مهم بود وبرای جانب مقابل اطمینان عدم استفاده ازخاک افغانستان بر خلاف امنیت آنها مهم بود.

[ ] سوال : مذاکرات کامیاب میان امارت اسلامی و ایالات متحده امریکا، چه الگوی برای سایر منازعات منطقه و جهان شده می تواند ؟

[ ] واقعا این مذاکرات کامیاب بین طرفین میتواند الگو برای حل منازعات منطقوی وبین المللی باشد دپلوماسی این را ثابت ساخت که میتوان جنگجال های بسیار عمیق وطولانی را از راه منطق، گفتمان و مذاکرات حل نمود در طول هجده سال مقاومت برحق امارت اسلامی افغانستان همیشه برحل مشکل ازطریق دیالوگ اصرار داشت ودر عمل آنرا ثابت ساخت که ما خواهان حل مشکل ازطریق دیالوگ ومذاکرات استیم، گره که بدست باز شود ضرورت نیست آنرا بدندان باز کنیم.

ومن الله التوفیق



## هالنډۍ لیکواله: له افغانانو څخه د معذرت غوښتلو لپاره دي په ټوله نړۍ کې ېبرغونه نیم ځوړند شي!

مشهوره هالندۍ لیکواله، اغلې بتي ډام، پخپل ټویټر کې لیکي د افغانستان د اسنادو خپرېدو دا خبره په ډاګه کړه چې امریکا او ملګرو یې د افغانانو پر ضد یو ځرګند غیر ضروري جنګ پیل کړیدی.

زما سپارښت دا دی چې له افغانانو څخه د معذرت غوښتلو په منظور دې په ګرده جهان کې د یوې دقیقې لپاره سکوت وسي، او هم دې په ټول جهان کې بېرغونه نیم ځوړند سي.

دا به د ګردو هغو افغانانو څخه د عفوې غوښتلو یو سیګنال وي چې پدې بین المللي تراژدۍ کې قتل سوي دي.

زیاتره خلګ پدې پوهېدل چې په افغانستان کې د امریکا جنګ یو غیر عادلانه جنګ دی، خو اوس د امریکا حکومت پخپله پر دې خبري باندې اعتراف کوي. دا خبره دا ثابتوي چې زیات بې ګناه خلګ بر ناحقه قتل سویدي.

زه مطمینه یم چې اکثره جهانیان او حتی د امریکا په حکومت کې دننه به هم ځیني خلګ د افغانستان د پېښو په هکله سخت غمجن سوي وي. نو لهذا، راځئ چې په ګډه د احترام په خاطر یوه دقیقه سکوت وکړو، او پر دې ستري بې عدالتی باندې تفکر وکړو. راځئ چې د احترام په خاطر هغو خلګو ته سلامي وکړو چې پدې جنګ کې قتل سویدي.

# ګلځونه



## غزل

ریحان

اوربـــل د ســـولې کــې ده پټــه پــه کــراره راځــي
د ازادۍ نـــاوکۍ غرونـــو نـــه تـــر ښـــاره راځــي

مـــور ورتـــه مهـــر کـــې لکونـــه شـــهیدان ورکـــړي
د ګـــل پـــه پـــاڼو د نـــازونو اداکـــاره راځـــي

خـــود بـــه یـــې غوښـــو نـــه د تـــن وړي مرغـــان مړېـــږي
زمـــا هیـــواد تـــه کـــافران د څـــۀ لپـــاره راځـــي؟

پـــه لېـــونۍ مینـــه اولـــس تـــرې کلکـــه غـــاړه اخـــلي
وروســـته لـــه څـــو ترخـــو لســـیزو انتظـــاره راځـــي

د وخـــت مـــؤمن طالـــب د سره یرغـــل ښـــامار وژلـــی
خـــود شـــیرینو بـــه د هیـــواد غېـــږ تـــه بـــې ډاره راځـــي

خـــو یـــوه مـــور بـــه تـــر مرګـــي پـــه زړۀ ســـکروټې ســـاتي
هـــر مـــازیګر بـــه د شـــهید زوی تـــر مـــزاره راځـــي

کـــه چـــا پوښـــتل چـــې شـــفاعت دې غېـــږ تـــه ولـــې راځـــي؟
تـــه یـــې ورغبرګـــه کـــړه، چـــې خـــود راځـــي، بـــې خـــاره راځـــي

## زعیم امت

توچـــون گفتـــی چنـــان هـــم شـــدچی نصـــرتِ خـــدابینم
امیرالمـــــؤمنین عمرشکســـــتِ امریکـــــابینم

ایکـــاش مـــی بـــودی مـــی دیـــدی ذلـــتِ اشـــغالگرانرا
هـــم ازناتوتاپنتـــاگون همـــه رابـــی نـــوابینم

عمراکنـــون امّـــت دانســـت مجـــددِزمان بـــودی
ملنـــگ بـــودی مگرشـــاهان نیازمنـــدِ شـــمابینم

صـــلاح الـــدین ایـــوبی شـــدی درجـــگِ صـــلیبی
غـــرورِ هرصـــلیبی راکنـــون درزیـــرِ پـــابینم

شهیدمنصـــورآرزوهای بریـــان ات تحقـــق یافـــت
سرورِ فـــتحِ مبـــین رادرقلـــبِ آســـیابینم

ای شـــهیدانِ انقـــلاب تجلیـــل شـــد جشـــنِ اســـتقلال
تنفیـــذِ دیـــنِ اللـــه رادردوامِ غـــزابینم

ایـــن بودشمشـــیرِبرّانِ استشـــهادیانِ امـــارت
کـــه اســـتکبارِ دنیـــارا زبـــون درهرکجـــابینم

ایـــن ثمـــرۀ قربانیهـــای ملـــت اســـت (شـــهیدزوی)
زعـــیمِ فـــردای امّـــت راطالـــب وملابیـــنم.

## مات ځنځیر...!

صفي الله رائد

پـه بندیانو کې یو څوک مې ډېر یادیږي
پـه بندیانو کې یو ګل مې نه هېریږي
پـه بندیانو کې یو ښکلی پـه خوب وینم
ځنځیرونـه یـې ماتېـږي؛ راخـلاصېږي
پـه بنـدیانو کـې یوچاتـه یـم بـې تابـه
پـه بنـدیانو کـې یـو څـوک را ازادېـږي؛
د باګرام دروازې داسې پـه خوب وینم؛
یـو پـر بـل پسـې مـاتیږي او ماتـېږي
ټـول بندیان ربه یو بـل پسې ازاد کـړې؛
پـه بنـدیانو بـلا زړونـه خوشـحالېږي
ســـتا خوبونـه بـلا ښـکلي دي رائـده؛
ســـپین نظـام بـه ابـادېږي، ابـادېږي.

## غزل د استاد فضل ولي ناګار په لاندې بیت ترسره شوې مشاعره: (خیال ته هوا د مدینې راځي انځور د زړۀ په آیینې راځي)

د وصل تندې دې نیولی یمه
د بېلتانه سوي لمبې راځي
اسرار عمر

د خدای حبیبه! مبارک رسوله!
د خدای کلام په تا پسې راځي
شفاعت ریحان

نن مې د زړه شکوفه و غوړېدل
ځکه شمال یې له روضې راځي
عبدالله ستوری

د مدینې دې یم عاشق حبیبه!
په زړۀ مې خوند تل د مکې راځي
عبدالله احرار

هره ورځ ویر دی او د غم سلګۍ دي
هره ورځ نوي جنازې راځي
دانش ملنګ

غمونه کډه وکړه، لاړ له کلي
دلته د سولې آنګازې راځي
افتاب ځدراڼ

ژاړي یو څوک دی، همېشه چې، کله
تر هغې پورې هدیرې راځي
عمر عمري

له اسمان مځکي ته وړانګې راځي
د سترګو تــور د امــینې راځــــي
حنیف رضوان

زړه مې هــغه وخت کې ارام ونیسي
چې پکې ستا ښکلې کیسې راسي
محمد اسحاق تمیم

اې له سهاره تر مــاښـــامه ښه یم
خو په ما درد په نیمې شپې راځي
اجمل دیدار

د یار د کلي په لیدو پسې مرم
فکر کې دنګې مــنارې راځي
شوګیر خوستی

بېلتون دي کړمه لیونی جانانه!
د هجر درد مې پر ســینې راځي
سمیع الحق سمیع

زه به د خدای رضا ته ورســــېږم؟
دې لار کې، ډېرې فاصلې راځي
روزالدین حقپرست

ربه کوثر او زمزم دواړه غــواړم
نوبت مې کله د پیالې راځي؟
بسم الله علمیار

عسکر طالب به سره ورونه جوړ شي
نن ســبا داســـې اوازې راځــي
عید مرجان درمان

هزار سلام دې وي په تا حبیبه!
داسې الفاظ مې تل په خولې راځي
زاهدي سهاک

په زور مې و باسي له کوره یو څوک
دښمن د کور تر دروازې راځي
شهادت وزیري

بلال په چـــیغو او ژړا واویلا
د خپل جانان تر مـــقبرې راځي
نورالهادي تائب

اوس یې پر شونډو مُسکا نه ښکارېږي
اوس چې راځي نو سترګې سرې راځي
نسیم منصور طالب

زه ورته لاره کې ګلونه شـــیندم
ستا له دیــــداره قافلې راځي
پښتنه حیاء

هلته د ځښـــلو اوبه نه شوې پیدا
هلته خو وینې له چیـــنې راځي
سعید لوګري

یوه مورکۍ تر نیمو شپو وینښه ده
زموږ تر کوره یې مصرې راځي
محمدالله همدرد

طالب شهید شـــو د اسلام لپاره
کور وایي نن شپه د جمعې، راځي
ابو حذیفه

حضور روان دی، له مکې په ارمان
د غم ځپې په فاطمې راځي
نسیم ویاړ

صلاة سلام په جانان وایه هر وخت
که په تا هر ځنګه شپې راځي
احسان الله صابر

حبیبه! ستا هجر زۀ داسې کړمه
په زړۀ مې تل د غم ځپې راځي
ادیب حدمد متوکل

چې حق خبره چیرته وکړم خدایه
بیا مې و پښو ته زولنې راځي
وصال دردمن

له ځنګه تللی یې دی خوږ پیغمبر
چیغې د ګران بلال له خولې راځي
نظرګل اند

ای بې وفا ژوګی مې ببرته راکړه
ستا له یارۍ نه مې توبې راځي
جنتي ملنګ

د رب کتاب دی عجیبه معالج
د حکمتونو ترې چینې راځي
عارف منصور

زما یوه خبره نه قبلوي
ځکه مې اوس ترېنه ګیلې راځي
صدیق الله راشد

تر ډېره وخته انتظار وم ورته
د زلفو بوی دې له خیمې راځي
عاجز کوچی

زۀ به له ډېر خفګانه مړ شمه یار
په تا چې هره ورځ جرګې راځي
قربان

جانانه! هر وخت ستا و پاک حرم ته
د درودونو ترانې راځي
مسعود ازمون

څه رنګا رنګه تشریفات نیسمه
هغه ګل رنګه نن دلې راځي
غریب یار

په جنازه پسې د ګل فدایي
له اسمانونو فریښتې راځي
احمدالله نثار

چې منافق او وطن فروش وګورم
ما له د اور غونډې لمبې راځي
الحاج مسکین یار عظیمي

له خوشحالۍ جامو کې نه ځایېږم
ستا د راتلو چې اوازې راځي
احسان الله ذهیر

زمــــا دې زړۀ کـــړلو ازار دلبره!
تاته مې خود په خوله ښیرې راځي
حبیبي افغان

د مبارک دین په اصولو کې هم
سل مبارکې صحیفې راځي
عبدالحق فدا

زړه کې مې څرېکي او دردونه راشي
چې تش پالنګ له هدیرې راځي
رحمت الله منیب

شفاعت ستا په مینه رنګ ښه یمه
خیر که غمونو سلسلې راځي
اسلام جان فدا

زما د زړۀ سمندرګي ته ولې؟
له درده ډکې سفینې راځي
عبدالله مکظوم

د جانان مینه کې اوبه اوبه شوم
څنګه به ماته تماشې راځي
عبدالوارث افغان

زړۀ ته سکون مې دا ستا پاکه مینه
تسل د مینې له ولکې راځي
محمد نسیم ریاض

چې یې دیدن یو ځلې کړی دی چا
له سپین جبین نه یې شغلې راځي
فهیم تیمور

لرو ایمان او عقیدې مضبوطې
سپین صباؤن به له تیارې راځي
منصور درمان

په بمبارونو او په ډرون کې شهید
طالب وجود ټوټې، ټوټې راځي
محمد زبیر عزام

څنګه به نه وي انوارات د رب مې
چې فیوضات ستا له سینې راځي
سهیل احمد جنتي

چاته یو ګل په مینه نه رسیږي
چاته د ګلو ګل دستې راځي
موسی احمدزی

په زړۀ مې نوم د محمد قریشي
په خوله مې درود او کلمې راځي
مبین الطاف

چې سنګرونه، کلي واړه ساتي
هغه طالب اوس له پیرې راځي
باوري غزنیوال

ستا په فراق کې زما اوښکې یاره!
مدام ګرېوان لړه ترخې راځي
ألفت جان

له خوشحالۍ نه به مې زړۀ وچوي
بندي وروړک مې له پنجرې راځي
مروا حیا

خدای دې قبول کړه ای شهیده یاره!
یاد دې د درد په بدرګې راځي
طیب سالار

د طالب جان د معرکې له ډګر
د تکبیرو مستې نعرې راځي
حامد حماسي

کلونه وشول ستا د مینې لا هم
ستا په لېدو پر ما لړزې راځي
جمالیار

بوی یې له مشک او له عنبر ښکلی دی
بـــــاد د حـــرم له دروازې راځي
شبیر عثماني

بیلتون غماز دی زه یې وخوړلم
دې جدایې ته مې ګیلې راځي
خالد احسان

ستا له نامې مې جار قربان لالیه!
خوله کې مې تل دا زمزمې راځي
سعید رحیمي

چې ځي، راځي ماته ارمان راشي
څوک چې له حج یا له عُمرې راځي
عارف الله نیکمل

خدایه دیدار یې د روضې راکړه
زړه کې مو دغه خاطرې راځي
افکار

د هجر درد یې بیا زړګی نیولی
بلال د خپل یار تر کوځې راځي
سمیع الله سمعي

ضرور به ده لره سلام ته ورځي
څوک چې د پاک رب تر کعبې راځي
نجیب مشفق

نن دی د ګرانې پنجشنبې ماسپښین
نن مې جانان له مدرسې راځي
محمد صادق صدیقي

کوم مجاهد پکښې زخمي پاته دی
سوی زګیروی له دې شیلې راځي
نثاراحمد مخلص

زه به همېش په تا درودونه وایم
ځکه زما پرې تسلې راځي
عمران تنګیوال

هر ماخستن د یار ترخه غمونه
ټولې ټولې جرګې جرګې راځي
عبدالباقي مهاجر

رب دی درکړی څه نادره حسن
چې تر عجمو یې جلوې راځي
یاسر یوسف



## د اسلامي امارت د رهبري شورا او مذاکراتي ټيم غړی مولوي عبداللطيف "منصور"

## د امريکايانو له لوري د تړون لاسليک په نظامي، سياسي او حقوقي لحاظ ثابته کړه چې نور په کابل کې هيڅ کومه مشروع اداره وجود نه لري، بلکې د دې خاورې او هيواد اصلي وارث اسلامي امارت دی

**له امريکايي لوري سره د مذاکراتو په پړاوونو کې ستاسې ستومانې او هڅې نه هېرېدونکې وې، کله مو چې له امريکايانو سره خبرې شروع کولې، دا هيله او اميد مو لاره چې امريکايان به د خپل غرور او يکه تازي له بامه راکوز شي، د افغانانو ارادې او ملي خپلواکۍ ته به درناوی وکړي، او بالاخيره به د اشغال د خاتمې تړون لاسليک کړي؟**

**ځواب:** بسم الله الرحمن الرحيم حامدا او مصليا، وبعد:

لومړی تاسو او ستاسو ټولو همکارانو ته سلامونه او نيکې هيلې وړاندې کوم، ستاسې د پوښتنو په هکله په لاندې ډول وضاحت کول غواړم چې همدا به يې ځواب هم وي، لومړی دا چې له امريکايانو سره تقريبا له يو کال څخه زيات په مستقيمه توگه د امارت د مذاکراتي ټيم له خوا خبرو جريان درلود، چې الحمدلله په لسم د حوت دغه ده توافقنامه امضا شوه، په دوران د مذاکراتو کې سختې پيچلې مرحلې هم راتلې، په يوه يوه موضوع ان يوه اونۍ بحث هم کېده، دا چې مونږ له يو داسې دوښمن سره مخامخ شوي وو، چې اتلس کاله يو او بل ته په سنگر کې پراته وه؛ نو دا فضا هم داسې وه چې ژربه موافقې ته ونه رسېږو او په جريان د خبرو کې به واقعيت ده چې داسې صحنې هم راتلې چې موږ به د دوی په نيت شک درلود چې هسې وخت راباندې تېروي، خصوصا د ټرمپ يو ټويټ د دواړو لوريو هيلې ټکنې کړې؛ خو زموږ رهبري او مذاکراتي ټيم حوصلې، تدبر او همت له لاسه ور نه کړ، او د هغې باوجود يې هغوئ ته لاره خلاصه پرېښې وه چې اسلامي امارت بيا هم د افغانانو د هوسا ژوند او د اشغال د خاتمې له پاره اماده دی، چې خبرې وکړي، چې جانب مقابل له عقل نه کار واخيست، يو ځل بيا دا پروسه د يو څه ځنډ څخه وروسته بيا شروع شوه، چې الحمدلله توافقنامه امضا شوه او د دوی هغه غرور او کبر چې طالبان يې د مرگ او بند مستحق بللي وو، له خاورو سره خاورې شو.

**پوښتنه: منصور صاحب! له امريکايانو سره د سولې او اشغال د خاتمې تړون په سياسي او حقوقي لحاظ اسلامي امارت ته څومره مهم او حياتي وو، او بيا چې کله ملگرو ملتونو هم نوموړی تړون تائيد او ومانه، له دې سره به اوس اسلامي امارت په سياسي او نړيواله کچه کومې اسانتياوې خپلې او ورڅخه به برخمن شي؟**

**ځواب:** د اشغال د خاتمې تړون په شرعي لحاظ د شيوخو او علماءکرامو تر کره کتنې وروسته په شرعي لحاظ هم تائيد شو او په سياسي او حقوقي لحاظ هم د پوهانو

لخوا تائید شو چې هیڅ شرعي او حقوقي نقض هم نه لري؛ نو په همدې اساس یې یو حیاتي او مهم مقام خپل کړ او چې کله بیا د ملګرو ملتونو لخوا تائید شو، د اسلامي امارت هر فرد اوس په نړیواله کچه ازاد دی، هر هیواد ته چې وغواړي دتګ کولو حق لري، هیڅوک یې مزاحمت نه شي کولی، همدا راز مغرضو کړیو او دوښمن چې موږ د ترهګرو په نوم پېژندلو او زمونږ جهاد یې تروریزم باله، دا ثابته شوه چې داعیه مو برحق او هغه ټاپې چې په موږ لګېدلې وې، اوس باطلې شوې، او مونږ ترهګر نه، بلکې ازادي خواه خلک یو چې هم رانه دین، وطن او کلتور غصب شوی دی، هغه مو خپل کړل.

**پوښتنه: د کب په ۱۰ نېټه چې امریکایانو د ۲۸ بهرنیو هیوادونو د استاذو او سوونو رسنیو ترمخ له اسلامي امارت سره کوم تړون لاسلیک کړ، د کابل رژیم یې په سیاسي اونړیوال میدان کې څومره تجرید او منزوي کړای شو؟**

**ځواب:** دا چې د کب په لسمه دا تړون د ۲۸ هیوادونو او سوونو سازمانونو په مخکې امضا شو، اولا د دغو هیوادونو سفیرانو او د نړیوالو سازمانونو د مشرانو حضور په سیاسي لحاظ د اسلامي امارت حیثیت دومره لوړ کړ او دکابل اداره یې په صفر کې ضرب کړله، او بیا وروسته د اسلامي امارت د سیاسي مشر- محترم ملا برادر اخند سره د ټرمپ ۲۵ دقیقه یې تلیفوني تماس خو دنیا داسې وانګیرله چې راتلونکی سیاسي نظام د امارت دہ، او په نظامي، سیاسي او حقوقي لحاظ دا ثابته شوه چې نور هلته په کابل کې هیڅ کومه مشروع اداره وجود نه لري؛ ځکه هلته دوه رئیس جمهور یو بل ته ښکر په ښکر دي، چې دا د نړۍ په هیڅ کوم هیواد کې مثل نه لري او افغانانو ته له شرم او خجالت پرته بل کوم حیثیت نه لري.

## د اولاد په اړه قیمتي او ګټور نصیحتونه

ژ: م عبدالله

که خپل ځوی دې په ژړا ولید ، نو د هغه په غلي کولو وخت مه ضایع کوه ، پورته اسمان کې کوترې یا مرغه ته لاس ونیسه او اشاره وکړه، چې ماشوم ورته پورته وګوري، ځکه د انسان فسیالوجي په ژړا کې داده چې کله ژاړي ښکته ګوري.

کله چې غواړې چې ماشومان دې له حوض څخه راووځي، داسې مه ورته وایه چې هلځ ژر شي اوس راووځئ، بلکې لومړی وواېه چې پنځه دقیقې وخت دی، بیا یې ورته شمار کړه، بیا ورته وواېه چې دوه دقې پاتې دي، په اخر کې ورته وواېې چې اوس راووځئ! بیا به دوی ډېر ژر وځي.

که چېرته دماشومانو په شورماشور کې وې او غوښتل دې دهغوی توجه جلب کړې، نو وواېه چې : څوک چې زما اوري، ګوته دې جګه کړي ، یو یو به ګوته پورته کوي، ترهغو چې ټول به غلي شي.

خپلو ماشومانو ته وایه چې سهارلمانځه ته پورته شئ،نو دوی سره به همیشه داخرت غم وي، داسې مه ورته وایه چې ویده شئ سبا به سکول/ مدرسې ته ځئ،ترڅو دوی راپورته کیږي او د دنیا غم ورسره نه وي.

خپلو وړو ماشومانو سره مینه وکړه، دا ورځې ډېر په چټکۍ روانې دي، بیا به درته په دوی کې یوائې د ماشومتوب وختونه یادیږي. مستي ورسره وکړه، وخانده، ټوکې ټکالې وکړه، ورسره ووځه ، ځان ورسره کوچنی کړه، لارښوونه او ادب ورته په مستۍ او لوبو کې وښیه!

مهرباني وکړه، موبایل لږ یوې خوا ته کړه، که دې خوښه وي کمپیوټر دې هم بند کړه، او که بده نه ګڼې له خپلو میلمنو او ملګرو هم معذرت وغواړه! چې زما و ملګرو! زه له خپلو ماشومانو سره مشغول یم.

دا کارونه د خپل هیبت غورځولو ، شخصیت کمزوری کولو او احترام او وقار پربښوولو په معنا نه ده ، عاقل سړی پدې پوهیږي چې د خپلو کارونو توازن څنګه وساتي او تربیت څنګه وکړي.

الله تعالی ته رجوع کوه، او له هغه جل جلاله څخه توفیق غواړه ، الله تعالی به دې دبچو په تربیه کې بریالی لري.

# بندیان د وسیلې په توګه

صارم

له کله نه چې دافغانستان اسلامي امارت او امریکاترمنځ داشغال دخاتمې تړون لاسلیک شوی، دکابل ادارې حیثیت صفرته راښکته او نیمه نړیوال اعتبار یې هم له لاسه ورکړی، که څه هم دځینو هیوادونو په مرسته هڅه وشوه، چې دانتخاباتو په پروسه به یې یوڅه حیثیت وراعاده کړي، خو هغه هم هاغه دی تولو نړیوالو ولیدل چې یونالاعلاج ناورین ګرځېدلی، نه دوی سره جوړېدای شي اونه یې امریکا علاج کولای شي او خبره یې له بدنه بدتره شوه.

اوس دغې ادارې ته یواځې بندیان ورپاته دي چې دیوې وسیلې په توګه کار ترې اخلي اویوڅه ځان پرې مطرح کوي، که څه هم دابندیان د دوی نه دي او دېراختیار یې له امریکایانو سره دی، ځکه ډېری یې هغه دي چې هغوی نیولي او بیایې دوی ته سپارلي.

دنړیوالو بشري قوانینو او د ژنیو کنوانسیون دتړون له مخې له بندیانو دغه ډول استفاده او سپرګرځول جداً ممنوع دي، خو ښکاري چې دکابل اداره دژوند په خپلو وروستیو مرحلوکې د دغو تړونونو ډېره پروا نه کوي او داخیستې عقدې له مخې د دغه ډول خنډونو ایجادول هم دځان په ګټه بولي، چې ګوندې دانتقام اخیستنې څه تنده به یې پرې ماته شي او لاس تړلو بندیانوته به دخپل زور بریتونه تاو کړي.

له امریکایانو سره دموافقتنامې تړون به هلته ټول په ټوله عملي وي چې په تړون کې شوې ژمنې عملي شي او په ټاکل وخت کې ترسره شي، ترڅو بین الافغاني مذاکراتو ته لار هواره او اشغال خاتمه ومومي، دبندیانو خوشې کول د دغې موافقتنامې یو له اساسي شرطونو څخه دی، په موافقتنامه کې صراحت شوی چې دبین الافغاني مذاکراتو له پیل مخکې به دغه (۵۰۰۰+۱۰۰۰) بندیان له بنده ازادیږي چې دبین الافغاني مذاکراتو پیل ته به لومړی قدم وي.

نوپه دې وخت کې چې هرڅوک هرډول خنډ رامنځته کوي په هیوادکې د پېښېدونکو ناخوالو مسؤلیت به هم مني، همدې علت ته په کتو دهیواد په بېلابېلو برخو کې دجنګ جګړو پېښېدل اوله جنګ نه د راولاړو ناخوالو مسؤلیت دکابل ادارې او هغوی په ملاتړو دی.

داسلامي امارت مبارزه دهیواد خپلواکي او داسلامي نظام تر حاکمیته ده، هیڅوک دې دافکر نه کوي چې له امریکایانوسره په تړون به دکابل ادارې بقاته جوازپیداشي، بلکې دغه اداره داشغال پاتې شونې او دافغانانو دوینو پوروړې ده، چې هیڅکله به دغه ډول بقانه شي موندلی دبین الافغاني مذاکراتو تعطیل او تاخیر به دکابل ادارې ته څومره ژوند ورکړي، چې په دغه ډول ناکامو هڅو لاس پورې کوي، مونږ ډاډه یو چې بندیان به خلاصیږي، خو تاخیر به یې له دې پرته چې د دوی دناکامو هڅو په لړلیک کې یوه ناکامه هڅه شي، بل څه په لاس ورنه کړي، حالاتو او شرایطو ته په پام دایوه خبره ډېره کره او ښکاره ده چې نور نو دکابل ککړه فاسده اداره هیوادوالو ته منظوره نه ده او نه کوم ډول شرعي او قانوني صبغه لري چې دواک پرګدی پرېښودل شي.

دبندیانو په برخه کې داسلامي امارت له لوري دبندیانو دکمیسیون هڅې دستایلو

دي، هغوی په دې برخه کې په خپلو کاري برخوکې خپل مسؤلیت په ښه ډول ترسره کړی، دقت او شفافیت یې دکمیسیون په توګه دکابل ادارې په پرتله ډېر منظم او دمقرره لوایحو په تطبیق برابردی، له بنديانو سره دښه چلند اوترحم کړنلاره یې واضح او په عملي ډول یې دخپلې سمې تګلارې ډېرې نمونې هم وړاندې کړې دي چې له بهرنیو بندیانو سره یې د " تیموتي ویکس، برګیډال... ښې بېلګې دي اوله خپلو افغاني بندیانو سره دښه چلن یې هم په سلګونو مثالونه شته چې یوائې دتضمین په ورکولو سره یې دملي اردو، امنیت، پولیسو او نورو نظامي افرادو ډلې ډلې پرې ایښې دکرایې، لګښت او ضروري اړتیاوو په ورکولو یې له ښه زړه او ښو خاطرو سره رخصت کړي.

دا د اسلامي امارت په منظم چوکاټ کې هغه امتیازي چلن اوتګلاره ده چې دکابل اداره تري محرومه او په همدې علت ورته دملامتیا څلور ګوټې ور اوړي اونه یوائې داچې زمونږ له خپلو افغاني بنديانو سره دغه ډول برخورد نه کوي، بلکې برعکس یې دټولو نړیوالو اصولو په خلاف عمل کوي او دخپلو شومو اهدافو لپاره تري دوسیلې په توګه کار اخلي.



# ولې د طالب مخالف یم؟؟

ډم وویل: طالب ځکه نه منم چې زما د فن دښمن دي او ختمول یې غواړي که ډمتوب ونه کړو نو څه وخورو؟

غل وویل: طالب ځکه نه منم چې غلا ته مې نه پریږدي او لاس راڅخه غوځوي.

قاتل وویل: طالب ځکه نه منم چې زما د انسان وژنې د ذوق مخه نیسي او په بدل کې مې قصاص کوي.

شرابي وویل: طالب ځکه نه منم چې په نشه کې مې تیشه وهي او په درو مې د خلکو د وړاندی وهي.

زناکار وویل: طالب ځکه نه منم چې د مینې، عشق او خوند دښمن مې دی یا مې سنګساروي یا راباندی حد جاري کوي.

همجنس پرست وویل: طالب ځکه نه منم چې زما د شخصی عمل مخالف دی طالب زما د خارښ څخه څه خبر دی .

خاین وویل: طالب ځکه نه منم چې د ګټو دښمن مې او په حلوا کې راته هډوکې جوړیږي.

د نړۍ هر کافر وویل: طالب ځکه نه منو چې زموږ وضعی نظامونه نه مني او په مقابل کې یې په ځمکه الهی نظام پلې کوي.

منافق وویل: طالب ځکه نه منم چې ډالر ورسره نشته هسی نه د ولږی مردار نه شم.

کمونست او خلقي وویل: طالب ځکه نه منم چې زموږ د هوررا د نعرې خلاف دی او زموږ په وړاندی یې په رڼا ورځ سرعام پـه چوک کې زموږ مشر ډاکټر نجیب شیید کړ.

د غرب څخه راغلي سیکولر سیاسیونو وویل: طالب ځکه نه منو چې زموږ واک او خود سري ختمیږي واپس به غرب ته ځو ا هلته به بیا غربیانو ته یا سپیان وینځو , یا به ورته په هوټلو کې لوښي وینځو او یا به ورته تشنابونه وینځو دلته خو واکداران یو .

غلام وویل: طالب ځکه نه منم چې دوی لیونیان دي نه په ځان دي نه په جهان دي په نشت وسایلو او یوازی ځان یې ټو نړۍ ته سر ټیټ نه کړو او سرلوړي خو زموږ په فطرت کې نشته

جاهل او روبوټ وویل: طالب ځکه نه منم چې بی بی سی، اشنا رادیو او نورو رسنیو کې ویل کیږي چې ښه خلک نه دي.

دا ډول خلک د طالب مخالفین دي خو دوی که خوشحاله وي او که خفه وي طالب یو حقیقت دی، د یو ستر حقیقت څخه دفاع کوي او د یو ستر حقیقت لپاره قرباني ورکوي، که نن نه وي سبا او که سبا نه نو بله ورځ به راځي د شهیدانو ارمانونه بـه پـور کیږي شرعی نظام به عملي کوي او دوی هر یو به محکمې ته راکاږي تر څو خپل کرلي وریبي.




# " اسلامي امارت د ديپلوماسۍ په ميدان کې هم دافغانانو د پاکو هيلو اوقربانيو ښه تمثيل او نمايندګي وکړه "

## شيخ الحديث مولوي عبدالباقي حقاني

الحمد لله و كفى وسلام على عباده الذين اصطفى، وبعد!

د کائناتو خالق دنيا د اضدادو مجموعه ګرځولې ده تر قيامته به د اسلام سره، سره په مخ د ځمکه کفر هم موجود وي، مسلمانان پر دې مکلف دي چې د الهي دين دعوت عالمِ انسانيت ته ورسوي او که د دعوت پر وړاندې موانع ايجاد شي بايد د جهاد د لارې يې ختم کړي.

الله تعالى پر مسلمان دا فرض کړي، چې په خپل اجتماعي ژوند کې به اسلام د نظام په توګه حاکم کوي او په دې لاره کې به هر قسم تکليفونه برداشت کوي او د هيڅ ډوله قربانيو څخه به دريغ نه کوي او دا وعده يې ورسره وکړه چې: ﴿ إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ ﴾.

که تاسو د الله تعالى د دين سره مرسته وکړئ نو الله تعالى به ستاسې سره مرسته وکړي.

او دا وعده يې هم ورسره وکړه چې: ﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ﴾.

کوم خلک چې زمونږ په لاره کې کوشش کوي نو مونږ خامخا دوي ته د کاميابۍ لارې ورښايو او د الله تعالى معيت او مرسته به د نيکيو کوونکو سره وي.

الله تعالى مسلمان ته دا قانون هم تر قيامته په لاس ورکړ چې: ﴿ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾.

که الله تعالى وغواړي نو ډېر کرت يو کم او کمزورې جماعت ته به په يو لوي او طاقتور جماعت باندې غلبه او کاميابي ورکړي.

بيا الله تعالى د خپلو کړو وعدو په اړه ارشاد فرمايي:

﴿ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ قِيلاً ﴾.

د الله تعالى نه څوک په دنيا کې رشتيني بل څوک نشته.

نبي کريم عليه الصلاة والسلام د صحابه کرامو رضى الله عنهم په ملتيا چې د کفارو سره جهاد شروع کړ قدم په قدم د الله تعالى نصرت ورسره ملګرې ؤ د الله تعالى د کړو وعدو په اساس د وخت دوه لوي طاقتونه روم او فارس ختم شو او تر قيامته يې انسانانو ته د درس او عبرت نه ډک تاريخ پريښود.

الله تعالى چې د مسلمانانو سره کومې وعدې کړې هغه وعدې به تر قيامته پورې جاري او ساري وي او په هيڅ وخت کې د الله تعالى په سنتو او وعدو کې خلاف او بدلون نه شي راتلای.

الله تعالى ارشاد فرمايي: ﴿وَلَن تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلاً ﴾ ﴿وَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَحْوِيلاً ﴾

اى مخاطبه! ته به هيڅ کله هم د الله تعالى په سنتو کې بدلون بيا نه مومې.

تر قيامته به د الله تعالى دا سنت جاري وي او د هر وخت سوچه مسلمان به په همدې عقيده وي، چې که د هر وخت مسلمانان د الله تعالى د ټاکلي معيار مطابق عمل وکړي الله تعالى به د خپل سنت مطابق نصرت ورسره کوي.

د الله تعالى نظام، د هغه وعدې، د هغه سنت به تر قيامته تغير نه کوي البته د مسلمانانو عقيدوي او عملي ضعف وخت په وخت ډېريدې شي.

په دې څلورو لسیزو کې الله تعالی مسلمانانو ته د خپل کتاب او نظام معجزه دوه کرته وښودله: یو کرت هغه وخت چې روسانو پر افغانستان یرغل وکړ، د افغانستان کمزورو او مظلومو مسلمانانو د خپل غیرت امتحان ورکړ الله تعالی د فارس په شان د روس امپراطوري ختمه کړه. هغه وخت په دنیا کې د جهاد او مجاهدینو حامیان ډیر وو او نو خلکو ته د معجزې د قوت اندازه ډیره نه لګیده، دوهم کرت هغه وخت چې شل (۲۰) کاله وړاندې امریکا افغانستان اشغال کړ او د ټولې دنیا کفارو او د دنیا مرعوبو او ضعیفه العقیده مسلمانانوددې اشغال سره مرسته وکړه چا هم ددې فکر نه کاوه چې په دنیا کې به داسې یو قوت وي چې ددې قوت مقابله وکړای شي، د اشغالګرو رعب او تبلیغات تر دې حده رسیدلي وو چې د زیاتو مسلمانانو همتونه کمزوري شوي وو او په زیاتو خلکو کې د جهاد توان او همت نه لیدل کیده او د دنیا د کبرجن سوپر طاقت امریکا سره دا فیصله وه، چې طالب او مجاهد نور د زمکې په مخ د ژوند حق نه لري.

په کلي، ښار، غره او غار کې پسې ګرځیده یا به یې شهیدانول او یا به یې ګوانتانامو زندان ته لیږل او غیر انساني او حیواني سلوک به یې ورسره کول، الله تعالی ته خپل دین او خپل بندګان ډیر محبوب او ګران دي. ﴿ وَمَكَرُواْ وَمَكَرَ اللّهُ وَاللّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ﴾

کفارو د خپل مکر وتدبیر څخه کار واخیست او الله تعالی خپل تدبیر اختیار کړ د الله تعالی تدبیر د ټولو نه ښه دی.

افغانانو د علماو او طالبانو تر مشرۍ لاندې جهاد ته دوام ورکړ، همت یې وکړ، غیرت یې وکړ د دنیا خلکو ورته لیونیان ویل یقینا ددین دې عاشقانو د هیڅ قسمه قربانیو نه دریغ ونه کړ، زندان یې قبول کړ، زخم او هر قسمه د ژوند تکلیفونه یې قبول کړل او تر دې چې خپل خوږ ژوند یې هم د الله تعالی د دین څخه قربان کړ، دومره قرباني یې ورکړې چې د اسلام په تاریخ کې ساری نه لري، الله تعالی کړې وعدې پوره کړې او د روم په شان د وخت د ټولو نه غټه امپراطوري امریکا او متحدین یې د دنیا د وړاندې داسې ناکام کړل چې د دنیا عقلاء یې حیران کړل. د وخت عقلاء په دې انتظار وو چې مجاهدینو خپل وختونه په سنګرونو کې تیر کړي علماو په مدارسو او مسجدونو کې وخت تیر کړې او امریکا او ددوي متحدینو د دنیا مشهورې یونیورستۍ ویلي امریکا څو کاله مسلکي خلک دې ته کینولي وو چې د مذاکراتو لپاره طریقه د کار وضع کړي او د عامو خلکو هم دا

ګمان ؤ چې شاید طالبان او علماء د مذاکراتو میدان ونه ګټي او یا د دنیا د ډیپلوماسۍ میدان ماهرین یې دوکه کړي، زمونږ په علمي چاپیریال کې د ډیرو هوښیارانو او علمي شخصیتونو هم همدا نظر ؤ.

خو الله تعالی د﴿ لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ﴾ وعده هم د مجاهدینو او علماو سره عملي کړه، د دنیا هیڅ یو سیاسي ډلې تر دې چې متعصبو دښمنانو هم په دې تبصره ونه کړه چې طالبان د مذاکراتو په میدان کې نه پوهیږي او یا د نړیوالو اصولو مخالفت کوي او یا کمزوري دي، کمزورو مسلمانانو ته په ځانګړې توګه دا عبرت او درس حاصل شو چې د سیاست او دیپلوماسۍ په میدان کې دیني سیاست او دیپلوماسي کامیابه ده، او دا تبلیغات بې ځایه دي چې علماء په سیاست نه پوهیږي او یا یو چا ته قناعت نه شي ورکولای.

د عثماني دولت د سقوط نه وروسته مسلمانانو ته په اولنۍ ځل اجتماعي عزت او کامیابي حاصله شوه، دې کامیابۍ کفري دنیا ته دا پیغام ورکړ، چې د اسلام او کفر په مقابله کې آخري کامیابي به د اسلام په حق کې وي، الله تعالی فرمایي: ﴿ وَأَنتُمُ الأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾.

که تاسې واقعي مؤمنان وې تاسې به اوچت او کامیاب اوسئ.

همدارنګې اسلامي دنیا ته هم دا پیغام حاصل شو چې که مسلمانان همت وکړي نو تر قیامته یې الله تعالی د دنیا په لویو طاقتونو کامیابولې شي، بې همتي نه ده په کار د الله تعالی په دین غیرت او او د همت نه کار اخیستل په کار دي.

لاس ته شوې کامیابي داد مجاهد کمال نه دی داد الله تعالی د دین کمال دی، لاس ته شوې عزت د الله تعالی د دین په وجه دی د الله تعالی په دین عمل د انفرادي او اجتماعي عزت ذریعه ده.

په جهاد سره مجاهد عزتمن ګرځي او په پریښودو او په ځانګړې توګه په مخالفت یې شخص سپک، ذلیله او رسوا ګرځي د بیلګې په توګه د روسانو سره په تیر ۱۴ کلن جهاد کې جهادي مشران د ټولې دنیا د مسلمانانو د خواصو او عوامو په وړاندې بې مثاله عزتمند وو خو کله چې ځینې جهادي مشرانو جهاد پریښود او په دې شل کلنه جهادي دوره کې د جهاد په

ځای د جهاد مخالفت یې وکړ همدا مشران بیا د مسلمانانو په نزد د ټولو خلکو څخه ذلیله خلک دي، د دنیا د ذلیله، ظالمانو کافرانو داسې غلامان شو چې په غلامۍ کې یې بې انتهاء ذلت برداشت کړ او لا برداشت کوي یې، بل لورې ته د دیني مدرسو طالبان او عالمان د دنیا د خلکو په وړاندې په انساني ټولنه کې کمزوري خلک ګڼل کیده خو د جهاد او په دین د غیرت په وجه د دنیا په سیاست کې د دنیا د سوپر طاقت امریکا سره مساوي بلکې ددوي څخه لا زیات محسوب شول او دنیا په دې نظر ده چې په دنیا کې دوه طاقته دي: یو امریکا او بل طالبان او مجاهدین او په دې دواړو کې مضبوط طاقت هغه طالبان او مجاهدین دي.

پیغام:

اسلامي امت ته عموما او د افغانستان غیرتي مسلمانانو او مجاهدینو ته خصوصاً لاندې پیغام لرم:

۱- لاس ته شوې کامیابي د الله تعالی ډیر لوی نعمت دی چې ددې نعمت پیرزونه یې پر دوي وکړه د الهي نعمت په هکله الهي قانون دادی چې: ﴿ لَئِن شَكَرْتُمْ لأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِن كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ ﴾

که ددې نعمت قدرداني وشي الله تعالی به په کې نوره اضافه هم وکړي او که د نعمت ناشکري وشي د الله تعالی د سنت له مخې نعمت د لاسه وځي، د نعمت قدرداني او شکر دادی چې:

۱- په کړو وعدو وفاء وشي او که وفاء ونه شي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ارشاد مطابق به الله تعالی پر مسلمانانو بیا دښمن مسلط کړي.

۲- تواضع خپله شي او د تکبر څخه ځان وساتل شي، ددې ټولو کامیابیو نسبت الله تعالی ته وشي نه مجاهد او یا بل چا ته.

۳- دا کامیابي د څلویښتو (٤٠) کالو د مجاهدینو او د عام ولس د قربانیو ثمره ده.

٤- په ﴿ خُذُواْ حِذْرَكُمْ ﴾ عمل وشي او همیشه لپاره د جهاد وسله په لاس ولري او د دښمن د مکر څخه غفلت ونه شي او نه دښمن دا احساس کړي چې مسلمانان د پخوا په شان نه دي پاتې شوي.

۵- جهاد به تر قیامته جاري وي عزت په جهاد کې دی د عزت اسباب قوي کول په کار دي.

٦- اتفاق او اتحاد ته پوره متوجه کیدل، د لاس ته شوي کامیابۍ یو لوی راز د مجاهدینو اتفاق ؤ که چیرته مونږ د کامیابۍ دا راز د لاسه ورکړو د کامیابۍ لپاره بل راز نه لرو.

۲- دوهم پیغام دادی چې مونږ د یو امتحان څخه تر ډیره حده الحمد لله کامیاب وتلي یو چې هغه د الله تعالی د دین لپاره جهاد کول او قرباني ورکول دي.

دوهم امتحان سره اوس مخ کیږو چې هغه د ١٤ کلن جهاد ثمره او په افغانستان کې د یو واقعي اسلامي حکومت اقامه کول دی.

دا امتحان خصوصاً دوه طبقو ته ډیر متوجه دی، چې یوه حاکمه طبقه او بله دیني عالمان دي.

دا امتحان ډیر سخت دی او دا ځکه چې په افغانستان کې هر وخت د جهاد سلسله الله تعالی کامیابه کړې ده ناکامي او تقصیر چې راغلې هغه د جهاد په نتیجه کې راغلې، د وخت حاکمان په دې نه دی موفق شوي چې یو داسې نظام اقامه کړي چې د اسلام مقروض نه وي.

په یادو دوو طبقو کې همیشه لپاره زیاته ذمه داري دیني علماو ته متوجه وي ځکه چې په دیني میدان کې اعتماد په دوي کیدای شي او دوي ددې اهل دي او دا مسئولیت لري چې د اسلام په ټولو مصادرو نظر واچوي.

ټول کلیات او مبادي په نظر کې ولري او د اسلامي حکومت داسې نقشه تیاره کړي چې د اسلامي شریعت د کلیاتو او مبادیو سره په تصادم کې نه وي، د مسلمانانو مصالح په کې متحقق وي او د مسلمانانو او رعیت د حقوقو او ضروریاتو جواب ویونکي وي او د نړیوالو څخه په جلب د نفعت او په دفع د مضرت کې خود کفا وي.

ددغسې نظام تشکیل د هغو علماو علمي دنده ده چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مدني سیاست او حکومت د لس کلن طرز العمل نه خبردار وي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته د څلورو راشده خلفاو رضی الله عنهم په دیرش (۳۰) کلنه دوره د خلافت علم ولري.

امام مالک رحمه الله وايي: د آخر امت اصلاح بـه پـه هغـه څه سره راځي په کوم سره چې د اول امت اصلاح راغلي ده.

که د خير القـرون د سياسـت او حکومـت طـرز العمـل پـه افغانستان کې تطبيق شي افغانستان د ټـول وخـت لپـاره د مشـکل څخه وتلای شي.

په مدينه منوره کې رسول الله صلی الله عليه وسـلم د ډيـرو مخـالفو طبقـو پـه وجـود کـې يـو اسـلامي حکومـت جـوړ کـړ مخالفينو ته يې حقوق او ذمه دارياني ورمعلـومې کـړې، ددوي د مخالفتو څخه يې ځان خـلاص کـړ البتـه دددوي مراقبـت يـې د نزدې نه کول او کنترول يې ساتل، خپل کار ته متوجه شو شپږ کا له وروسته يې دا توانائي پيدا کړه چې د ټولو نـه قـوي او سرکشـه دښمن د مکې قريشو ته يې ماتې ورکـړه او د اسـلامي حکومـت په مخ کې مخالف ټول طاقتونه يې ختم کړل او اسلام يـې د دنيـا زياتو برخو ته ورسول، راشده خلفاو رضی اللـه عـنهم هـم همـدا طريقهء کار تعقيب کړه چې د نړي خلکو ته يـې د اسـلام نعمـت ورسول.

دا کار به په علمي دنيا کې د علماو څخه ډير کار وغـواړي که علـماء همـت وکـړي، دقـت وکـړي د موضـوع حساسيت او اهميت ته متوجه شي د اسلام د اجتماعي او سياسي نظام ژوره او ربښتيني مطالعه وکړي، د جذباتو په ځای د حوصلې او دقـت نـه کـار واخـلي، د علمـي ميـدان د مـاهرينو څخـه پـه کـې استفاده وکـړي، پـه مدارسـو او علمـي ادارو کـې دې موضـوع تـه ځـای ورکړي، ځوانان تربيه کړي، د مسئوليت احساس وکړي نو هماغه ذات به مونږ ته په دې ميدان کې هم کاميابي رانصيب کړي لکـه څرنگې يې چې په جهادي ميدان کې کاميابي راکړه دواړه طبقې بايد دا احساس وکړي:

۱-دا د ٤٠ کلنو قربانيو محصول دی.

۲-دې محصـول سره د ټـول اسـلامي امـت عـزت او ذلـت تړلې دی.



۳-یاد محصول سره که احتياط وشي مشران يـې د اسـلامي امت سالمه رهبري کولای شي.

د قربانيو په وجـه ددې خطـي مسـلمانان ددې مسـتحق دي چې د اسلامي امت قيادت او راهنمائي وکړي.

دا استحقاق د دنيا په بله حصه کې نـه دې پـاتې شـوې او د همدې امله د نړی مسلمانان په همدي اعـتماد کـوي، البتـه دا بـه مهمه وي چې ددې خطـې حاکمـه او علمـي طبقـه د قيـادت او راهنمائي استعداد او صلاحيت په ځان کې پيدا کړي.

٤- هغو افغانانو ته چې د پرديو د گټو پـه خـاطر د اسـلام او مسلمانانو په ضد استعمال شوي دا پيغام لـرم چـې (٤٠) کلونـو دا ثابته کړه چې په افغاني ټولنه کې د اسلام نه علاوه بل نظام ناکـام دی او په هيڅ قيمت يې افغانان نه برداشت کوي کـه تاسـو خپـل ځانونه د راتلونکي اسلامي افغانستان سره جوړ کړئ دا به ستاسـو لپاره د دنيا او آخرت د عزت او گټې ذريعه وي.

د اسلام او زوريـدلي غـيرتي مجاهـد ولـس د مصـالحو پـه خاطر د ټولو ذاتي غوښتنو او تقاضو څخه تير شئ.

پردی غوښـتنې او گټـې پريـږدئ او خپلـې گټـې پـه خپـل اسلامي افغانستان کې ولټوئ.

۵- په ملک کې دننه او د ملک څخه بهـر ټولـو محصـلينو، استاذانو او د سائنسي ميدان ماهرينو ته مې دا مشوره او پيغام دی چې محصلين دی په خپلو تحصيلاتو کې پوره کوشش وکـړي د وخت قدر وکړي خپل وخت ضائع نه کړي تر څو پـه راتلـونکي کې د افغانستان په بيا آبادولو کې مؤثر کردار ادا کړي.

استاذان او نور د سائنسي ميدان ماهرين بايـد د افغانسـتان د بيا آبادولو او په خپل کور د خـود کفـا گرځولـو لپـاره بايـد دوي خپل ټول استعدادونه په کار واچوي.

د اسـلامي امـارت د عـالي تحصـيلاتو ادارې سره خپلـې رابطې او مشورې تنظيم کړي.

یاده اداره ددوي د مشورو هر کلې او قـدر داني کـوي او د افغانسـتان پـه بيـا آبـادولو کـې بـه دوي تـه د امکـان تـر کچـې د خدمت زمينه سازي کوي.

وما ذلک علی الله بعزيز

# داسلامی امارت دسیاسي دفتر او مذاکراتي ټیم غړی محترم

# مولوي خیرالله خیرخواه



**دکب د ۱۰ تړون دافغانانو لپاره ستر ویاړ دی چې د اشغال خاتمه راغله اوامریکا دافغانانو برحقي داعیی ته سربښکته کړ، اوس د افغانانو لپاره تر ټولو دا ښه چانس ده چې خپلې ملي ګټې مخې ته کېږدي، او له تېر څلویښت کلن بحران د حساب کولو، تربګنۍ او ګډوډیو نه تېر شي.**

تاسې په ګوانتانامو کې ډیری کلونه له امریکایانو سره په اسارت کې تیرکړي په خبرو او تعهداتو کې تاسې ته دامریکایانو خلاف ورزیانې او عدم وفا تربل هرچا ښکاره دي، ایا تاسې داباور درلود چې امریکایان به یوه ورځ له اسلامي امارت سره په خپل عهد ودریږي او داشغال دخاتمې په تړون به لاسلیک وکړي؟

**ځواب:**

د هر چا خپل برداشت وي. خو ما چې څو مجالس له امریکایانو سره ولیدل، نو له هغه زما برداشت دا وو چې دوی قصد کړی دی چې اووځي له افغانستان څخه، تر دې وړاندې که وګورو داهم ویلای شو چې سیاسي بصیرت هم سړي ته ویلای شي چې یو ملک پر یونیم لک خارجي پوځونو سره او په داخل کې کابو دوه لکه یا تر هغو هم د زیاتو پوځونو روزل، او تر نولس کاله جنګېدو، چې د دنیا سوپر طاقت هم ځان ته وایي، هلته هغه ملک کابو نشي۔ کړلای، او په دې ونتوانېږي چې امنیت راولي، نو د هغوی یقیني مجبوریت دی چې له هغه ملک څخه اووځي.

او د هغوی دا مجبوریت تقریبا هرچا حس کړای وو، خو بیاهم د هغوی بل مجبوریت دا وو چې تر یو وخته هلته پاته شي چې ترڅو دنیا ته وښایي چې مونږ نه یو مات شوي، ځکه یې دا مجبوریت وګاله.

خو چې کله مجلسونو کې مونږ ورسره وو مونږ ته دا پته ولګېده، چې دا خلک غواړي اووځي، خو کوشش کوي چې څومره یې د مخ اوبه پاتې شي او څومره په یو سم انداز کې و وتلای شي، او هڅه وکړي چې د ناکامی کوم ظاهري څه پاتې نشي ترې، نو د دوی د ناکمیو پټېدو په خاطر هڅو ځینو ملګرو ته دا فکر ورکاوو چې ګواکې دوی به وو نه اوځي، او ملګرو ته به شک لوېده چې دوی دا لوبه هسې ګرمه ساتلې او د دوکې هڅه کوي.

خو ما چې څو ځایه د دوی مجالس ولیدل، نو زه په دې پوی شوم چې دوی وتل غواړي، خو وتل چې څومره د دوی توان کې وي هڅه کوي ابرومندانه او یو ښه فضا ځان ته برابره کړي د وتلو لپاره.

نو دا ما د دوی سره له مجالسو درک کړې وه چې وتل له افغانستان څخه د دوی مجبوریت دی. خو هڅه کوي ځان ته یوه مناسبه موقع ولټوي.

**پوښتنه:**

که دکب د۱۰ تاریخي تړون عملي شي اوامریکایان له افغانستان څخه ووزي مثبت اثرات او نتائج به یې په سیمه او دافغانستان په ګاونډ سه وي، ځکه په افغانستان کې امریکایی حضور یواځې افغانستان ته په زیان او تاوان نه وو بلکې ټوله سیمه او ګاونډ یې ګوابناوه؟

**ځواب:**

دي کې شک نشته د دوی راتګ افغانستان ته یوازې افغانستان نه بلکې د منطقې د مرکز نیول وو، او له دې ځایه به یې

شا و خوا ملکو نــه تــر خپـل دیـد لانـدې نیـولي وو، او د هغـوی د نفوس مخنیوی به یې کاوو.

د دې ترڅنګ به یې چې چا باندې د تاثر لاندې راوستو هڅـه کوله له دې ځایه به وه، د دې ترڅنګ غټو قووتو هم اندېښـنه لرلـه چې د دوی شتون بـه دلتـه مـونږ تـه مسـایل پیـدا کـړي، نـو غـټ قووتونه زمونږ څنک ته ودرېدل، وړو هغـو هـم پټـه/ ښـکاره هڅـه کوله او په دې کې ول چې امریکا باید له افغانستان څخه اووځـي. ځکه هغوی په دې باور ول که نن مستقل یم دغه تاثر به هغه وخت زمونږ استقلالیت تر سوال لاندې راولي چـې دوی پـه افغانسـتات کې هدف ته ورسېږي. خُلاصه عموما شـا و خـوا سـیمه د دوی لـه شتون څخه ناراضه وه، او له افغانستان څخه د امریکا وتـل بـه تـر افغانانو ګاونډیانو او سیمې ته مخکې ارامي وبخښي.

دویم قدم کې د افغانستان او افغانانو لپاره ستر ویاړ دی چې د اشغال خاتمه راغله، او اوس د افغانـانو لپـاره تـر ټولـو دا ښـه ده چې خپلې ملي ګټې مخـې تـه کېـږدي، او لـه تېـر ځلوېښـت کلـن بحران د حساب کولو، تربګنۍ او ګډوډیو نه تېـر شي او شـاته یـې کړي، نو به د دې تاریخي ویاړ او ازادۍ هغه ثمره وخوري.

او همدارنګه به ګاونډیو ته هم د دې ثمـره ور وبخښـي. چې هغه به ارامي، تجارت، اقتصاد، او داسې نور مسایل وي.

امید لرم چې افغانان به له دې تېرو ځلوېښت کلنو غمیزو ډلو او ډلبازیو او ګډوډیو و دربدریو نه تېـر شي او د تېـر جهـاد څخـه وروسته حالت نه په عبرت به خپلې ملي ګټې مخې ته کېږدي.

نو ان شاءالله چې اسلامي امارت او ټول افغانان به له جزءي مسایلو تېرېږي، او د وطن او سیمې آبادۍ ته به کار کوي.

**پوښتنه:** خیرخواه صـاحب داشـغال دخـاتمې پـه تـرون کـې ممکنه ده چې دځینو هیوادونو نومونـه راتـه واخلـی چـې هڅـې او مرستې یې کړي او امریکایـان یـې دیتـه هڅـولي وي ترڅـو تـرون لاسلیک او غاړه ورته کیږدي؟

**ځواب:**

دې کې شک نشته چې دې بهیـر کـې ځینـو ملکونـو هڅـې کولې، خو سربېره د دې چې دوی به د افغانستان لپاره خیر غوښته، خپلې ګټې یې هم په نظر کې نیولې وې؛ چې هغه د نـورو جهتونـو سره نزدیکت، نورو مالکو سره ښې اړیکې، او د دې ترڅنګ یې پـر خارجي سیاست هم ښه اثرات لوېدل.

نو په دې کې د ملکونو رول یقیني وو، چې د هغو لـه ډلـې د قطر هیواد، پاکسـتان، روسـیه، چـین، انـدونیزیا، نـاروې، جرمنـي، ازبکستان، او داسې نور ملکونه، چې د دوی څه ناڅـه هڅـې داوې چې دا مجالس وشي، مذاکراتو له لارې ستونزه حـل شي، نـو لکـه څنګه چې ما پورته هم وویل، د دې ترڅنګ چې دوی به افغانسـتان ته ښه نیت درلود، خپلې ګټې یې هم درلودې.

پوښتنه: او عزتمنده که دمذاکراتو په اوږدو کې دپیښو شوو خوږو او ترخو خاطرو سه جزیـات راتـه ووایـی نـو دڅـرک مجلـې لوستونکي به خوښ کړی؟

**ځواب:**

دې کې شک نشته چې د مذاکراتو پر دوران کې له خـوږو و ترخو سره مخ شوي یو؛ خو ترخه مسایل / خـاطرې زمـا لپـاره دا وې چې کله به مجلس کې پر تېرو مسایلو بحث راغی او یو بل ته مـو د کړنو پېغورونو/ تانې ورکوې.

چې دا کاملا بې ګټې او بې خونده څه وو. او د تېرو مسـایلو بحث او تانې بار ـ بار د دې باعـث شـوي چـې زمـونږ مجلـس یـې خراب کړای وي. چې دا زما لپاره بې خونده او خرابې خـاطرې وې، هغه ځکه چې زمونږ هدف مخته تګ وو. تېر خو هسې هم تېر دي، مونږ به ویل چې باید مخته ولاړ شو.

او خوږې خاطرې زمـا دادي چـې کلـه بـه هـم مـونږ د هـدف لیوري ته نیږدې کېدو، او خوند به یـې هلـه کـاوو چـې د دوښـمن لخوا به هغه خسایر او نقصانات را څرګند شول چې پر میډیا به یـې نه ویل.

مونږ له مخکې لا په دې باور وو چې دا جنـګ دوی تـه ډېـر نقصان لري خو دوشمن یې پټوي. دلته به چې را څرګند شول، مـونږ د مشکل حل پکې لیده.

خوږې او ترخې د دې بهیر ډېرې دي. خو دا یې ما هسـې یـوه نمونه درته وویلې.



# زموږ د لیکنو ارزښت او اړتیا

شهیدزوی

حضرت علي رضی الله تعالی عنه فرمايي وغږېږئ چې وپېژندل شئ !

بې له شکه چې د ویلو له لارې دانسان مقام او مرتبه ډېره ښه معلومېږي .

انسان په سترګو لیدل، په غوږونو اورېدل په ژبه څکل او ویل کوي ؛ په زړه او اعصابو سوچ فکر ، اودعقل جوهر دښو اوبدو ترمنځ تمیزلپاره دی؛ په پښو تلل او دژوند کابونور ټول مهم کارونه په لاسونو کېږي چې لیکل هم پدې مهمو کارونوکې داخل دي.

دویلو استعداد د الله تعالی ورکړه او ستر نعمت دی ؛الله تعالی فرمايي : رحمن ښودلی دی دقرآن (چاته یې چې دښوونې اراده شویده) پیداکړی یې دی انسان بیايي ور ښودلی دی بیان (خبرې چې دزړه مقصدونه پرې ادا کېږي).

بیان وینا او کتابت دواړو ته شامل دی .

لیکل شوي توري ویل کېږي او ویل شوي الفاظ لیکل کېږي.

د علم دښکاره کېدو او خپرېدو همدا دوه لارې دي یو ویل اوبل لیکل .

دعلم دخوندي پاتې کېدلو هم دوه ځایونه دي ،سینه اوکاغذ یا بل هغه څه چې په تېرو زمانوکې به پرې لیکل کېدل.

که له خارق العادة سینو پرته عامو سینو ته نظر وکړو نو کاغذ له سیني زیات اوښه ساتونکی دی چې دا خبره دلیل وړاندې کولو ته اړتیا نه لري نو ځکه خوبه دوحي دنزول نه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم د وحي کاتبان راغوښتل اونه یوائې داچې دوحي دلیکلو حکم به یې ورته کاوه بلکې دهر آیة او سورة محل به یې هم ورپه ګوته کاوه .

د مختلفو اصحابو کرامو سره دالیکلي آیتونه او سورتونه د ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه په خلافت کې دښه حفاظت اودضایع کېدو نه دخوندي کېدو په اراده راټول او په یومصحف کې ولیکل شول.

بیا دحضرت عثمان رضی الله تعالی عنه په خلافت کې دنورو نسخوتیارېدل او داسلامي خلافت تر ولکې لاندې نورو سیمو ته یې لېږدول هم دهمدې هدف لپاره و.

درسول الله صلی الله علیه وسلم احادیث چې ولیکل شول او په کتابونو کې راټول شول نومحفوظ شول .

ددین داامامانو مجتهدینو او فقهاءو پر امت ډېر ستر احسان دی چې یې سخت کوښښونه وکړل په ډېرو کمو او عادي وسایلو یې سیرة ، اسلامي عقاید ، داسلام تاریخ ،دقرآن تفسیر او دشریعت ټول احکام ولیکل ؛ ددې لیکلو په برکت دا هرڅه هم محفوظ او هم په اسانه ټول امت ته ورسېدل .

مسيحي نـړۍ تـر منځنيـو پېړيـو دکليسـا دجـبر ښـکار وه ؛ دعلمي خبرو بيان ،ليکل ، علمي پرمختگ او علمي څېړنې هرڅـه دکليسا له لورې ممنوع وو نو ځکه مسيحي نـړۍ پـه علمـي ډگـر کې ډېره وروسته پاتې وه ؛ خو چې دپاچا او کليسا واکونـه تقسيم او بيا دعلمي ليکل شـويو عبـارتونو دچـاپ وسـايل ايجـاد او ورو ورو دتېزۍ اوعصريتوب پر لور ولاړل نو ورسره پـه مسـيحي نـړۍ کې هم په تېزۍ سره علم خپور شو ؛ دمسلمانو عالمـانو لـه لـورې دايجادشـويو ساينسيـ ، طبيعـي اوتخنيکـي علومـو نـه هوښـيارو انسانانو کار واخست پدې علومو کې يې سوچ فکر اوتحقيق وکړ چې داکار هم په نړۍ کې دصنعتي انقلاب لامل شو او هـم ورسره دځمکې پر مخ ، په ځمکې کې دننه ، دسمندر پـه تـل اوفضـا کـې دالله دقدرتونودننبو نه پرده پورتـه او تـولې هغـه علمـي بـاريکۍ او رازونه هم انسانانو ته روښانه شول چې دوحي لـه لارې انسـانانوته ډالۍ شوي وو .

اوس چې د ليک، چاپ اونشر وسايل ښه ډېر دي نـو دټولـو ولسونو پوه خلک دخپلو ولسونودلارښونواوپرمختگ لپاره پـه هـره موضوع ليکل کوي .

په هرې ژبې کې لـه مـذهبي ،سـياسي ،علمـي، اجتماعـي ، ساينسي، طبعي، تجـارتي، ثقـافتي، تعليمـي،ادبي موضـوعاتو نـه نيولې تر لوبو او پخـلي پـورې پـه هـره موضـوع غـوره يـاکمزورې ليکنې موندل کېږي .

که دتاريخ پاڼې وپلټل شي نو داسې ليکنې هم شته چې بسته علم يافن يې پرنوي لوري روان کړی وي ؛ داسې ليکنـې هـم شـته چې دسياسي او مذهبي انقلابونو سبب شوي وي او داسې ليکنـې هم مومو چې دهېوادونو او ولسونو دازادۍ لامل شوي وي.

هدف دادی چې موږ کې څوک پوهه او د وينا استعداد ولري نودخپل ولس دلارښوونې لپاره يې په اړينـو او گټـورو موضـوعاتو وينا گټوره او اړينه گڼل کېږي همداراز چې څوک دپوهې تر څنگ دليکلو استعداد لري نو ليکل يې ډېر اړين دي .

دنړۍ په نورو خلکوکې يو ښه صفت دادی چې که پوهه يـې کمه هم وي خونورو خلکوته دخپلې پوهې ور انتقـالولو احسـاس يې قوي وي نوځکه ددې کمې پوهې لرونکـو دپوهـو نـه هـم ډېـر خلک گټه پورته کوي خو زموږ ډېـر خلـک داسـې شـته چـې ډېـره پوهه لري خو څـوک يـې دپـوهې نـه گټـه پورتـه نکـړي ؛ دا زمـوږ دپوهې خرابي او نقصان ندی بلکې دا زموږ دطبيعتونو او مزاجونـو خرابي ده .

په نورې نړۍ کې څوک په علمي ډگر کـې غفلـت اوبـدنيتي نه پېژني خوموږ هم غافل اوهم بدنيته يو ؛ په موږ کې بـه ډېـر کـم پوهان داسې وي چې نورخلک اوخصوصاً کشران دخپل ځان سره په علم کې برابروويني .

موږله هر کار نه وړاندې دهغه کار دمـادي گټوپـه فکـر کـې يو؛ موږ کې بلا عوضه دخدای مخلوق ته دخيـر رسـولو احسـاس کم دی ؛ زموږ د ډېرو علوم دهغوئ سره په سـينو کـې پـټ گورتـه ولاړ شي او علوم يې د ژبې او قلم له لارې خلکو تـه ونـه رسـېږي حال داچې زموږ شريعت کې دا کار دزغم وړ ندی ؛ دکتمان علـم په هکله احاديثوکې وعيدونه راغلي دي.

نو خپل ولـس تـه دخيـر رسـولو او دگمـراه کوونکـو خلکـو دگمراهۍ نه دساتلو لپاره ژبه اوقلم دواړه په کار اچول دوخت ډېره ستره اړتيا ده.

خو څه چې وايو اوليکوورسره د دوه خـبرو لحـاظ ډېـر اړيـن دی. اول دا چې خپل ولس ته دگټې رسـولو احسـاس ورسره مـل وي تر څو ( دخيرالناس من ينفع الناس) مصداق وگرځو او دوهـم داچـې دښـو او بـدو تميـز پکـې وي ترڅـو دثـواب پرځـای دگنـاه مرتکب نه شو .

دژبې ترځنگ لاس هم دبدن هغه اندام دی چې ډېر گناهونـه پرې کېږي؛ زموږ ايـمان دی چـې اللـه تعـالی بـه دقيامـت پـه ورځ دخپل مشيت له مخې دمجرمينو نـه ددې انـدامونو پـه واسـطه دتـر سره شويو گناهونوپه باره کې پوښتنه کوي بلکې هغه څـوک چـې

دخپلو گناهونو نه انکار وکړي اندامونـه بـه يې اللـه تعالی گويا کړي او پرضد به يې گواهي ورکړي .

نوبايـد لـه يـاده ونـه باسـو چـې د گڼـو نـورو گناهونوترڅنـگ ناسـم ليکـل هـم دلاس گنـاه ده ؛ غيبت ، بهتـان ، بـدې ردې،کنځـل، فحش خبرې ، دروغ اودشريعـت لـه اصـولو اولارښـوونو خـلاف خبرې که دخولې گناه ده نو همـدا چـې بيا پـه لاس ليکل کېږي دا ټول دلاس گنـاه گرځـي بلکـې دلاس ددې گنـاه قباحـت پـه دې زيـاتېږي چـې دا تردېـرې زمـانې پـاتې او دډېـرو لوسـتونکو دگمراهـۍ سـبب گرځي .

نــو دهرمســلمان لپــاره اړينــه ده چــې دخپلــو ليکنوسره ډېر احتياط وکړي او دجايز اوناجايز تـوپير له پامه ونه غورځوي چې همدا دجايز اوناجايز تـوپير بايد ديو ژمن مسلمان ليکنه له نورو راجدا کړي.

دوحي علم چې دانسان د سياسي ، اجتماعـي اخلاقي او اقتصادي پرمختگ او استحکام لپاره کـوم اصـول وضـع کړيـدي دانســان لـوړوالی اوټيټــوالی دهمدې اصولو لـه مخـې دی ؛ دانسـان دلـوړوالي او انحطاط درجه بندي هم همدې اصولو تـه دنژدېکـت يا لريوالي له امله رامنځته کېږي .

ډېرې ليکنې به داسې وي چـې هـم بـه دسـرې لپاره صدقه جاريه وي اوهم به يې پرې شـمله اوچتـه وي .

خوډېرې داسې هم وي چې هم پرې سـړی لـه مرگ نه پس گناهگار وي او هـم يـې دنسـلونو لپـاره پېغور شي .

نـوهر مسـلمان تـه ښـايي چـې دقلـم دتقـدس لحاظ وساتي او دخپلو ليکنو سره احتياط وکړي .

# نبـوي ملغـلري

انس (رضی الله عنه) وايي:
يو کس له رسول اللهﷺ وپوښتل : قيامت به کله وي؟
هغه ورته وفرمايل، څه دې ورته تيار کړي؟
وای نور هيڅ نه؛ خو له الله او رسول سره يې مينه لرم.
رسول الله ﷺورته وويل چې دکوم بنده چا سره مينه وي نو اخرت کې به همغه سره وي.
انس رضي الله عنه وايي: دډېرو خبرو په پرتله په دې زيري زښت زيات خوشاله شو.
امام أبو زرعة رحمه الله وايي:
امام احمد بن حنبل رحمه الله سره ناست وم چې د إبراهيم بن طهمان يادونه وشوه، امام احمد رحمه الله د مرض له امله تکيه کړې وه نو راکيناست او ويې ويل: د نيکو خلکو ياد چې کيږي، بايد څوک تکيه ونه کړي.
تذکرة الحفاظ للذهبي:۱/۱۵۷.

يو کس رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل:
څرنگه دعا وکړم؟
هغه ورته وفرمايل، داسې ووايه:
اللَّهمَّ اغفِر لي وارحَمني وعافِني وارزُقني.
يا الله ما وبښه، رحم راباندې وکړه، روغ مې لره او پاکه روزي راکړه؛ دا مو ددنيا او آخرت دعا ده.

#صحيح_مسلم

ابن المديني رحمه الله وايي:
شعبي رحمه الله ته چا وويل:
دومره علم دې څنگه تر لاسه کړ؟
هغه ورته وويل: دخلکو په خبره مې تکيه نه کوله تر څو به مې خپله مسئله ونه کتله، تر هر ښاره مې سفرونه وکړل، د حيواناتو په څېر مې صبر کاوه او د کارغي غوندې وختي پاڅېدم.
(صفحات من صبر العلماء)
سعد بن ابی وقاص وايي چې رسولُ الله صَلَّی الله عَلَيْه وَسَلَّم وفرمايل:
د بني ادم نيکبختي دې کې ده، چې الله تعالی څخه د خير غوښتنه (استخاره) وکړي او دا يې هم نيکبختي ده چې د الله تعالی په پريکړې خوښ وي او دا يې بدبختي ده چې خير نه غواړي او د الله تعالی په پريکړه ناخوښه وي.
مسند أحمد:(۱۴۴۴).



## د اسلامي امارت دمذاکراتي کميټي غړی

# محترم مولوی مطیع الحق خالص صاحب

**په توافق کې کوشش شوی چې افغانستان په راتلونکې کې د نیابتي جګړو مرکز او میدان ونه ګرځي.**

پوښتنه: له امریکایانو سره د اشغال د خاتمي تړون چي د ۱۳۹۸ لمریز کال د کب په لسمی په دوحه کي لاسلیک شو، ستاسو له نظره څومره تاریخی اعتبار او ارزښت لری او که نوموړی تړون پلی شي افغان مجاهد ولس ته به په سیاسي اوجهادي ډګرونو کې څه لاسته راوړنې ولري ؟

ځواب: الحمدلله رب العالمین والصلاة والسلام علی رسوله الامین وعلی اله واصحابه اجمعین

وبعد

الله تعالی فرمایی (من المؤمنین رجال صدقوا ماعاهدوا الله علیه فمنهم من قضی نحبه ومنهم من ینتظر ومابدلوا تبدیلا)

دالله جل جلاله په نصرت اوبیا دشهیدانو دپاکووینو، دمجاهدینو دبېسارو قربانیواومسلمان ملت دقاطع ملاتړ په برکت چې دکب دمیاشتی په لسم ۱۳۹۸هجری شمسی کال داشغال دخاتمې کوم تړون په دوحه قطر کې دافغانستان داسلامی امارت اودامریکا دمتحده ایالتونو ترمنځ امضاء شو ډېرخصوصیات لری دمثال په طور

۱-داتړون دامریکا متحده ایالتونو چې متجاوز قوت دی مستقیما دمجاهدینو دقیادت یعنې اسلامی امارت سره امضاء کړ

۲-تړون دبندو دروازو ترشا نه بلکې دلسګونو دولتونو داستازو په حضور اوشاهدئ کې دستخط شو

۳- تړون فقط ددواړو جهتونو ترمنځ په توافق لیکل شوی

۴-په توافق کې کوشش شوی چې څنګه ممکن کیدای شي چې فی الحال اوهم په مستقبل کې افغانستان دنورو هیوادونو دنیابتي جګړو څخه وژغوري اوداسې نور خصوصیات هم لري.

که داتړون په همغه روح پلی شي په کوم چې لیکل شوی دوه اساسی غټې لاسته راوړني به ولرو

۱- دمجاهدینو اومسلمان ملت لویه ارزو داشغال مکمله خاتمه به حاصله شي

۲- دافغانانو دخپل منځي اوبامقصده ناستوپه نتیجه کې به دیو متحد ملت په حیث د اسلامي نظام او هوسا ژوند ځښتنان واوسو چې دا د ملت دتیرو څلورو لسیزو راهیسي یولوی ارمان دی

پوښتنه : دغه تړون دملگرو ملتونو او امنیت شورا له لوري هم تائید اوومنل شو ستاسې په فکر په نړیوال میدان کې دغه تائید څومره ضروري او مهم وو؟

دې کې شک نشته کوم تړون چې دملگروملتو دامنیت شوری تائید کړی دبین المللی قانون حیثیت خپلوي عمل ورباندې په ذیدخله طرفونو ډیرالزامي گرزي نسبت هغه تړون ته چې فقط طرفینو امضاء کړی وي ددې ترڅنگ دتړون په طرفینو دامنیت شوری کې دجهت اویوقوت په حیث حساب کیږي چې دا بیا په دنیاوي حساب امارت ته په بین المللي سطحه قوت وربخښي.

پوښتنه : تاسي په ټولو مهمو مذاکراتی پړاوو کې شامل وی، ستاسو په اند هغه کومی نکتې او سری کړښی وی چی اسلامی امارت او امریکایانو ورباندی ډیر ټینگار درلود ؟

دې کې شک نشته چې داوگدو مذاکراتو په جریان کې ډیرداسي مسائل راتلل چې ورځې ورځې بحث به یې غوښتو خواساسي ټکي اسلامي امارت سره داوه چې دهرقسمه اشغال خاتمه باید یقیني شي په راتلونکي کې داشغال سدباب وشي یعني دابایدښکاره شي چې اشغالگربه داشغال غلطي نه تکراروي دتورلست اوبندیانو موضوع هم باید له همدوی سره فیصله شي.

اومقابل جهت سره دی ډیر اهمیت درلود ترڅو ډاډ ترلاسه کړی چې دافغانستان خاوره به ددوی په خلاف نه استعمالیگي.

پوښتنه : جناب ! د یوې ځانگړي پوښتنې په توگه مو ځواب غواړم

دامریکایی لوري دمذاکراتي ټیم مشری افغان الاصله امریکایی ځلمي خلیلزاد کوله او نوموړی دتیرجهاد په مهال له مشهور جهادي او سیاسي شخصیت مرحوم خالص بابا نورالله مرقده چې ستاسې والد گرامي وو له نیږدي شناخت درلود او کله چې خالص بابا رحمه الله امریکاته تللی دهغه مهال دامریکایی ولسشمر ریگن او دمجاهدینو دپلاوي مترجم هم وو ایا خلیلزاد کومه ورځ هغه خاطري تاسې سره شریکي او یادي کړي که سه توضیحات راکړي ؟

هو دامریکایي مذاکراتي ټیم مشري افغاني الاصله امریکایي داکتر زلمي خلیلزاد کوله چې دتیرجهاد په دور کې دمجاهدینو دمشرتابه دهیئتونو سره دامریکا په حکومت کې ترجمان پاتې شوی و اوزمونگ دوالدصاحب رحمه الله ونورالله مرقده په شمول یې د ټولو رهبرانو سره شناخت درلود دوه دری ځلې یې تیري خاطري یادي کړي خو دا چې دامریکایي تجاوز په ابتدا کې چې لادافغانستان اسلامی امارت سقوط نه وکړی زمونگ والدصاحب رحمه الله د اولنی جهادي قائد په حیث دامریکا په خلاف دجهاد اعلان وکړاو دافغانستان دمسلمان ملت اوخپل تنظیم دمجاهدینو څخه یې غوښتنه وکړه چې دامریکا په خلاف جهادته متې را بډوهي اوداسلامی امارت ملا وروتړي اودوهم ځل یې دهجرت نه پس بیاداشغال په خلاف دجهاد اعلان وکړ پدې اساس چې دی اوس د اشغال نماینده اومونگ ددوی په خلاف دجهاد صف کې قرارلرو دده دخاطرو ذکرته التفاط ونکړ اوده هم بیا یادي نکړي.



# مولوی شمس الدین شریعتی صاحب، مسئول ساحوی کمیسیون سمع شکایات وجلوگیری از تلفات ملکی

من متن پیمان پایان اشغال را مطالعه کردم، به کمال متانت و هوشیاری نماینده گان سیاسی و تیم مذاکراتی امارت اسلامی ارج می گذارم که توانستند با درک مسؤلیت های اسلامی، ملی و تاریخی، و با روحیه آزادی خواهی شان، از مجاهدین و ملت جهاد پرور افغانستان درست نمایندگی کنند.

**سوال: امارت اسلامی به تاریخ دهم حوت پیمان پایان اشغال را در دوحه، مرکز کشور قطر امضا کرد. از نگاه شما، کدام عواملی است که امریکایی ها را آماده ساخت تا از غرور و خودخواهی شان دست گرفته، به اراده دینی و ملی افغان ها سر بگذارند؟**

جواب: بسم الله الرحمن الرحیم - حامدًا و مصلیًا: بلی، تاریخ دهم حوت پیمان پایان اشغال در دوحه مرکز کشور قطر، باب جدیدی را برای افغانستان رقم زد. عواملی که آمریکایی ها را از مرکب تکبر شان پایین کرد، اولا مقاومت دوامدار و خستگی ناپزیر ملت غیور و مؤمن افغانستان، به خصوص تدبیر و مقاومت رهبری متعهد، وفادار و با همت امارت اسلامی افغانستان، ثانیاً: ضربات کوبنده مجاهدین سرسپرده امارت اسلامی، علی الخصوص حملات مجاهدین فدایی بر مخفیگاه های امریکایی ها و سایر اشغالگران در نقاط مختلف کشور، سوم: موقف منطقی امارت اسلامی در قبال معضل کنونی کشور به ویژه پایان اشغال، چهارم: درک حساسیت کشورهای منطقه از حضور نظامی امریکا در افغانستان به واسطه روابط و مساعی سیاسی امارت اسلامی. پنجم: پی بردن امریکایی ها به اشتباه بنیادی سیاسی شان، که عبارتست از ارزیابی نادرست وفاداری و وابستگی افغان ها به ارزش های دینی شان و نیز درک سطحی جغرافیه و تاریخ افغانستان.

**سوال: جناب مولوی صاحب! شما پیمان را مطالعه کرده باشید. نمایندگان سیاسی و تیم مذاکراتی امارت اسلامی درین پیمان تا چه اندازه توانسته اند از داعیه بر حق امارت اسلامی و آرمان های مردم مجاهد افغانستان دفاع و تمثیل کنند؟**

جواب: درست، من متن پیمان پایان اشغال را مطالعه کردم، به کمال متانت و هوشیاری نماینده گان سیاسی و تیم مذاکراتی امارت اسلامی ارج می گذارم که توانستند با درک مسؤلیت های اسلامی، ملی و تاریخی، و با روحیه آزادی خواهی شان، از مجاهدین و ملت جهاد پرور افغانستان درست نمایندگی کنند، وهمه جوانب حقوقی، سیاسی، تاریخی و ملی را در نظر گرفتند، چنانکه پیمان پایان اشغال مورد تائید و صحه گذاری همه مبصرین و حقوق دانان نیز گردیده است. همچنان از لحاظ تاریخی، نماینده گان سیاسی امارت اسلامی توانستند برای ملت مسلمان افغانستان روز و تاریخی را رقم بزنند که در گذشته نزدیک، تجربه نکرده بودند. این به واقعیت جای ستایش است.

**سوال: پس از امضای پیمان، پیام شما به مردم افغانستان چیست؟**

جواب: پیام من برای ملت درد دیده و رنج کشیده افغانستان اینست که بیش از پیش، داعیه برحق امارت اسلامی را لبیک گفته، دوشادوش برادران مجاهد خود پرچم پر افتخار امارت اسلامی افغانستان را بلند نموده، در اخذ استقلال کشور عزیزمان قدم به قدم سهیم شوند و با استفاده از همچون فرصت تاریخی، در استقرار نظام کامل اسلامی همکار شوند، تا آرمان شهدا و بازمانده گان شان به نصرت الله متعال تحقق پیدا کند، به امید چنین روزی. والسلام.

حسن زوی

# کوچني ویروس

## او د ستري نړۍ بې ساري بې وسي

د کرونا ویروس په نوم دالله یوداسې خورا کوچني مخلوق چې په سترګو هم نه لیدل کېږي په ډېرو کمو ورځو کې یې ټوله نړۍ ولړزوله.

دانساني ژوند ددې دښمن اودټولې نړۍ انسانانوترمنځ جنګ روان دی؛ پدې جنګ کې دانسان دا دښمن دانسان سره مخامخ جنګ کوي خو له سترګوپټ دی؛ کوم ځای کې پټ دی، چرته یې انسان ته کمین نیولی کله به حمله کوي؟

پدې هیڅوک نه پوهېږي.

انسان ایله هغه وخت پوه شي چې ویروس پرې وژونکې حمله کړې، بدن ته یې ور دننه شوی او په بدن کې کافي وخت هم تېر کړی او دده سګې اوستونی یې نیولی وي.

د ویروس او انسان ترمنځ دې جنګ کې ویروس اقدام کوي او انسان دفاع؛ انسان تر دې دمه په خپلې دفاع کې ناکام دی او خپله ناکامي یې منلی هم ده.

انسان ویروس ته شا کړیده؛ کورته په تېښته او په ځان پسې په دروازه بندولو کې خپل نجات ګڼي خو دا داسې دښمن ندی چې کور ته په تېښته انسان وبښي بلکې هر چاته په دروازه کې ولاړ دی اوپه داسې چل دخپل دښمن پسې کورته دننوتلو هڅه کوي چې مخنیوی یې کابو ناشوني دی.

نودې خورا کوچني مخلوق ټول انسانان کورونو ته ننویستل خوپه کورونو کې ترې هم په سختې وېرې کې دي.

دعقل ډېرو دعوېدارو به له دې انکار کاوه چې ګیني نمرودیان دې الله تعالی دماشو په ذریعه هلاک کړي وي؛ اوس الله تعالی ورښوده چې ځماجنود ماته معلوم دي ځه دماشو نه هم په ډېر کوچني مخلوق خلک وژلی شم.

هو! کرونا ډېر کوچنی مخلوق دی؛ داسې کوچنی چې دبرقي مایکرسکوب په واسطه یې وجود څوزره چنده لوی کړای شي نو ایله ښکارېږي.

خو همدې کوچني مخلوق داسې لویو هېوادونو اوسترو مادي طاقتونو ته ماتې ورکړه اوعاجز یې کړل چې دمخلوق په مقابل کې به یې شکست اوعاجزي په خیال اوخاطر کې هم نه راتله.

دچین نه پس دې ویروس اروپا دجنګ په مرکز بدل کړیدی؛ دایټالیا، فرانسې، هسپانې اوبرتانې په څېر داروپا خورا مترقي، دخطرونو نه خوندي اودصحي اودژوند دمادي وسایلونه پورمامور هېوادونه یې سخت راګېر کړیدي؛ دعام او خاص دتوپیر پرته په مرض داخته کېدونکو او مړه کېدونکو تنانو په شمېر کې ورځ تر بلې زیاتوالی راځي.

دلویدیځ یادو خورا پرمختللو هېوادونو له لورې ددې مرض دخپرېدا دمخنیوي لپاره هیڅ دیادولو وړ ګټور اقدام ندی رامنځې ته شوی.

بس د دولتونوترټولو کامیاب اقدام دادی چې خپل ټول هېوادوال یې په خپلو کورونو کې قید کړیدي او ښارونه، سرکونه اولارې کوڅې یې په بشپړه توګه له انسانانو خالي دي.

که حالت همداسې وي شاید دلته یو ستر انساني ناورین رامنځته شي.

دې خورا کوچني ویروس دنړۍ د۱۹۰ نه زیات هېوادونه دخپلې اغېزې لاندې راوستي دي او دډېرو هېوادونو نظام او ژوندبېخي مفلوج شو؛ مشرق اومغرب کې چوپتیا خپره ده؛ ژوند بېخي بدل اوخورا ډېر اغېزمن دی.

په انساني تاریخ کې به له دې ورانديې داسې کومه وبا نه وي راغلې چې دومره زیاته خپره شوې وي اوانسانان یې دومره زیات وېرولي اوپه کورونوکې محاصره کړي وي.

دنړۍ واکمنان حیران دي؛ د وچې، فضا اوسمندرونو دتسخیر دعوه کوونکي اوس دیوکوچني ویروس په مقابل کې په تمامو معنو بې وسي دي او دخپلې بې وسۍ اعترافونه هم کوي.

سپینه ماڼۍ، واشنګټن او نیویارک سخت ورخطا دي ځکه چې دپینټاګون پرمختللې وسلې ددې کوچني ویروس دمقابلې ندي.

په تورو شپوکې زموږ پر کورونو حمله کونکي اودبلیک هاک هلي کوپټرو نه زموږدمېرمنو اوکوچنیانو وژونکي امریکایي وحشي فوځیان اوس ددې کوچني ویروس له وېرې په خپلو فوځي مرکزونوکې بارکونو ته ورننوتي دي او دراوتلو نوم نه شي اخستی.

ددې سترو هوایي ادونو هرڅه مفلوج دي؛ سوداګري، صادرات او واردات یې په ټپه ودرېدل؛ دګاونډیو هېوادونو سره یې پولې وتړل شوې؛ هوایي اوځمکنۍ کرښې بندې شوې؛ دنړۍ ددې لویو هېوادونو مشهور ښارونه چې له رنګینیوبه ډک او پکې به دانسانانو هجوم و اوس بند دي اولویو لارو کوڅو کې یې یو انسان هم په نظرنه ښکاري؛ دانسانانو نه دا لارې کوڅې داسې خالي پرتې دي ته به وایې چې دلته یو انسان هم ژوند ندی کړی.

داهماغه هېوادونه دي چې اوهان کې ددې مرض دخپرېدا پرمهال یې په سخت مصیبت کې اخته چین تنها پرېښود؛ دچین په بې وسۍ پسې یې خنداګانې کولی اوپه هرځای کې به یې دچینایانو سپکاوی کولو.

څومره به ښه وه چې ټولې نړۍ په ګډه دچین مرسته کړی وای ترڅو په لږو ورځو کې په چین کې دننه دا ویروس له منځه تللی او نورې نړۍ ته نه وای خپور شوی.

دهاورډ پوهنتون استاذ مارک لپ سټچ وایي چې دچین سره نه مرسته دنړۍ دواکمنانو نا اهلي ده چې ستر تاوان یې اوس ولسونو ته رسېږي.

په نړۍ کې څه عجیب حالت دی؟!

ټول کائنات دقال په ژبه پوښتي چې دامریکا په شمول ددې سترو زبرځواکونو زور، لویې اوغرو څه شو؟

دپرمختګ او دمخلوق دتسخیر لویې دعوې څه شوې؟

عصري وسایل اوپرمختللی ټیکنالوجي یې څه شوه؟

هغوئ چې ویل به یې دنړۍ هرطاقت ته دشکست ورکولو توان لري اوس دې کوچني ویروس ته ولې شکست نه شي ورکولی؟

هغوئ چې (زماجسم اوزما خوښه) ناري یې پورته کولې؛ دشرعي پردې او دمېرمنو لپاره دعفت اوعصمت دشرعي احکامو پسې یې چې خنداګانې کولې اوس دوئ څه شوې چرته ولاړې او ددوئ خپله خوښه چرته ولاړه؟

ولې یې اوس دسراومخ په شمول ټول بدنونه پټ کړیدي؟ د زماني نمرودان به دامرض محض یو اتفاق او طبعي آفت ګڼي؛ لابه هم نه دا الهي عذاب بولي اونه به دانسانانو بغاوت ددې اصل لامل ګڼي.

ځکه چې ددوئ دعیش عشرت نه ډک ژوند، دژوند اسانتیاوې، مادي وسایل اوترې ګټه پورته کول ددوئ دژوند اصل هدف دی؛ دانسان پیدایښت هسې یو تصادف ګڼي چې دیادو شویو امورو پرته یې دژوند دبل هیڅ هدف ندي قائل.

خومور مسلمانان پدې عقیده یو چې دحدودونه دانسانانو تېرېدنه

دعذابونو د راتللو اصل معنوي عمده لامل دی.

انساني تاریخ شاهد دی چې په خپل مادي طاقت دغرور له امله چې کله هم انسانانو دخدایتوب دعوه کړې نو داسې نمرودان الله تعالی په خپل کمزوري مخلوق معذب ګرځولي دي.

نن هم په نړۍ کې ګڼ نمرودان دي چې په خپل مادي طاقت سخت مغرور دي؛ له ټولوپولو اوړېدلي دي؛ دخدای دطاقت ببخي منکر دي دخدای په کمزورو بندګانو یې ظلمونه او وحشتونه اوج ته رسېدلي دي او دالله تعالی نه دبغاوت له ټولو پولو نه اوړېدلي نو الله تعالی یوه کوچنۍ تنبیه ورکړه او دیو کمزوري مخلوق په مقابل کې یې شکست ټول مخلوق ته ښکاره کړ.

زموږ دشرعي لارښوونو له مخې موږ دا مرض دسبب په درجه کې منولکه (فرمن المجذوم فرارک من الاسد): په جذام مرض داخته تن نه داسې تښته لکه دزمري نه چې تښتې. داحدیث په همدې دلالت کوي چې باید دسبب په درجه کې ومنل شي.

خوعلت تام یې نه ګڼو ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې (لا عدوی ولا طیرة ولا هامة ولاصفر)

یانې خامخا اوپه خپل سر دمرضونو یوبل ته انتقال نشته، بدفالي نشته، بلا نشته اودصفر بدبختي نشته.

موږ مسبب الاسباب الله تعالی ګڼو یانې پدې مرض داخته تن دنورو روغو خلکو سره اختلاط د روغو خلکو دناروغی سبب ګرځېدای شي خو دې سبب کې دسبب جوړېدو صلاحیت الله تعالی اچوي؛ که الله تعالی په مرض د روغو خلکو داخته کېدو اراده وکړي په مرض به اخته شي او که الله تعالی یې دمرض نه دخوندي پاتې کېدلو اراده وکړي نو خوندي به پاتې شي او دمریض اختلاط به ورته هیڅ ډول تاوان ونه رسوي.

خو زموږ دشرعي اصولوله مخې دنیا دارالاسباب دی؛ دمشروعو مقاصدو او مطالبو لپاره داسبابو اختیارول اوترې کار اخستل شرعي لاربښوونه ده اوداسبابو دترک نه موږ منع شوي یو.

نودصحت پوهان چې ددې مرض نه دخوندیتوب لپاره کوم احتیاطي تدابیر په ګوته کوي د اسلامي هېوادونو په دولتونو لازمه ده چې داپه خلکو تطبیق کړي اود خلکو هم شرعي مسئولیت دی چې ددې تدابیرولحاظ وکړي خوپدې شرط چې دشرعي لاربښوونو سره په ټکر کې نه وي.

دشریعت لاربښوونه داده چې کوم ځای کې طاعون ګډ وي نودهغه ځای خلک دې بل ځای ته نه ځي اوڅوک چې ورنه خوندي پاتې وي هغوئ دې دطاعون ځای ته نه ورځي.

ټول علماء پدې متفق دي چې دطاعون په څېر دهر وبائي مرض همدا حکم دی.

کرونا هم دطاعون په څېر وبائي مرض دی حکم یې هماغه دی نوموږ مکلف یو چې دشریعت داصولو سره سم دټولوهغو احتیاطي تدابیرو لحاظ وکړو کوم چې دطب دمستندوپوهانو له لورې خپرېږي.

خو اعتماد به مو دالله تعالی په ذات وي؛ په اسبابو کې تاثیر دهغه له لورې دی چې همدا دتوکل معنی او مفهوم دی؛ داسبابو ترک توکل ندی بلکې پر اسبابو دنتایجو ترتب الله تعالی ته سپارل توکل دی. پیغمبرصلی الله علیه وسلم خپل صحابي ته و فرمایل (اعقل وتوکل) داوښ پښه وتړه اوتوکل وکړه.

اسبابوطرف ته په اعقل کې اشاره وشوه او پدې اسبابو باندې دنتایجو ترتب چې دالله تعالی کار دی په توکل کې ورته اشاره وشوه.

نو دژمنو او خپل شریعت نه دباخبرو مسلمانانو مسئولیت دادی چې اوسنی وبا کې خلک له افراط او تفریط نه لرې وساتي؛ نه څوک ددې مرض نه انکار اوبې احتیاطی ته پرېږدي او نه چاته دا اجازه ورکړي چې هرڅه داسبابو پورې وتړي اود الله تعالی د

ذات نه خدای مکړه یقین پورته شي چې دیقین په کمزوري کېدو انسان دسختې وېرې ښکار کېږي اوهمدا وېره بیا دانسان دفاعي قوت اغېزمن کوي چې همدا بیا دانسانانو دمرګ اصل لامل ګرځي.

ژوندي به هغه څوک پاتې کېږي چې داحتیاطي تدابیرو ترڅنګ یې دالله تعالی په ذات قوي یقین وي.



**د مصر "الحیات" تلوېزون د کرونا وایروس سره د ویډیو کال له لارې مرکه کړې ده.**

**یاد وایروس پخپلو خبرو کې وویل: "**

**زه یو عادي وایروس یم، اصلا ما فکر نه کولو چې زه به دومره مشهوره شم. په لومړیو کې مې څو چینیان ونیول، ما نه غوښتل چې دوی مړه شي؛ مګر زما د نوم په اورېدلو دوی خپله ساه ورکړه؛ بیا نو خبره میډیا ته لاړه او په څو شپو ورځو کې زه ډېر زیات مشهور شوم. زه نه په هوا کې یم، نه په ککړو لاسونو کې او نه په سړو کې، زه اوس د خلکو په ذهنونو کې یم او دومره ژر ما څوک له خپل ذهن نه نشي لرې کولای.**

**او ها ریښتیا، پر یوه خبره دې ټوله دنیا پوه شي چې که زه هرڅومره هم خطرناکه، ظالم، بدکاره، وژونکی، او بې رحمه شم؛ خو بیا هم انسان ته نه شم رسېدلی؛ ځکه چې څومره وحشت انسانانو په دې نړۍ کې کړی دی، زه یې په زرو کلونو کې هم نشم کولای؛**

**نو که تاسو انسانان په هنداره کې کتلو سره له خپل ځان څخه نه وېرېږئ یا د بل انسان په لیدلو د ډار احساس نه کوئ؛ نو له ما بیارېږئ؟! "**

د سياسي دفتر او مذاكراتي ټيم غړی او د کميسون ويندوی

# ښاغلی محمد سهيل شاهين

**تړون اســــلامي امارت پـه نړۍ کې د ديوازيني پـه آزادی مين ســـياســـي او نظامي قوت او د افغانستان اصلي وارث پـه توګه راڅرګند او ثابت کړ**

**پوښتنه: له امريکايي لوري سره د مذاکراتو په پړاوونو کې ستاسې ستوماني اوهڅې نه هيريدونکي وي کله مو چې له امريکايانو سره خبري شروع کولي دا هيله او اميد مو لاره چې امريکايان به دخپل غرور او يکه تازی له بامه راکوز شي دافغانانو ارادي اوملي خپلواکی ته به درناوی وکړي او بالاخره به داشغال دخاتمې تړون لاسليک کړي؟**

ځواب: نحمده ونصلي على رسوله الكريم اما بعد، تاسې ته معلومه ده چې د عاليقدر امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په وخت کې قطر د اسلامي امارت د سياسي فعاليتونو لپاره د يو معلوم ادرس په توګه انتخاب شو. هغه وخت موږ باور نه درلود چې امريکايان د مسئلې سوله ايز حل غواړي او که نه خو امريکايانو به تل تور پورې کاو چې طالبان يوه جنګي ډله ده، په سوله ايز حل باور نه لري. له همدې امله اسلامي امارت په قطر کې سياسي دفتر پرانيست ترڅو امريکا او نورو ته دا بهانه په لاس ورنشي چې ګواکې اسلامي امارت د افغانستان د مسئلې سوله ايز حل نغواړي. د دفتر له جوړيدا سره سم له ډيرو هيوادونو سره مستقيمې او له امريکايي لوري سره غير رسمي رابطې او تماسونه پيل شول. تاسې ته معلومه ده چې د اوباما په وخت کې دفتر هم پرانستل شو لاکن د کابل ادارې د بې ځايه مخالفت له امله بند شو. ولسمشر اوباما په لومړيو کالونو کې نظامي ستراتيژی خپله کړه او تر يو لک پورې امريکايي عسکر يې افغانستان ته راوستل لاکن کار يې ورنکړ. ولسمشر ټرمپ هم په پيل کې خپلو جنرالانو ته وويل چې د نظامي قوت له لارې امارت او افغان ولس ته ماتې ورکړې خو پاتې راغلل. بلاخره يې درک کړه چې د افغانستان قضيه نظامي حل نه لري. په حقيقت کې مذاکرات د اوباما په وخت کې پيل شوی و او څو کالونه يې دوام وکړ، حتی څو ځلې ديته ورسيدو چې د دفتر د پرانستلو اعلان وکړو خو بيا به يو مشکل پکښې راغی. البته د تير يو نيم کال مذاکرات چې اوږده، پيچلی او لوړې او ژورې يې درلودې خو کامياب و. همدا وجه وه چې د تيرې فبروري مياشتې په ۲۹ مه نيټه د اشغال د پای ته رسيدو تاريخي تړون لاسليک شو.

**پوښتنه : شاهين صاحب له امريکايانو سره دسولې او اشغال د خاتمې تړون په سياسي او حقوقي لحاظ اسلامي امارت ته څومره مهم او حياتي وو او بيا چې کله ملګرو ملتونو هم نوموړي تړون تائيد او ومانه لدې سره به اوس اسلامي امارت په سياسي اونړيواله کچه کومې اسانتياوي خپلي او ورڅخه به برخمن شي؟**

ځواب: په سياسي او حقوقي لحاظ د امريکايانو سره د سولې او اشغال د خاتمې تړون خورا اهميت لري. په نړيواله سطحه زموږ د مبارزې مشروعيت ومنل شو او دا چې زموږ هيواد اشغال دی، بايد خارجي ځواکونه ووځي. دا پخپله برخه کې يوه لاسته راوړنه ده. موږ په توافقنامه کې ليکلی چې امريکا به د افغانستان په کورنيو چارو کې مداخله نه کوي. افغانان به پخپله د راتلونکي سياسي نظام په هکله په مستقله توګه تصميم نيسي. همداشان د ملګرو ملتونو له لوري ددې تړون تائيد په

نړیواله سطحه د اسلامي امارت د رسمیت پیژندلو په معنی دی او دا به له مختلفو هیوادنو سره د اسلامي امارت د ډیپلوماتیکو اړیکو په جوړولو او غښتلتیا کې مرسته وکړي. ددې علاوه، یاد تړون د اسلامي امارت برحقه داعیه او سولې ته یې ژمنتیا ثابته کړه او اسلامي امارت یې په نړۍ کې د ګران هیواد د یوازیني په آزادی مئین سیاسي او نظامي قوت په توګه راڅرګند کړ.

**پوښتنه : د کب په ۱۰ نیټه چې امریکایانو د ۲۸ بهرنیو هیوادونو د استاځو او سوونو رسنیو ترمخ له اسلامي امارت سره کوم تړون لاسلیک کړ دکابل رژیم یې په سیاسي او نړیوال میدان کې څومره تجرید او منزوي کړای شو؟**

ځواب: د کابل رژیم مخکې هم د اداري فساد، نا امنیو او انتخاباتي نانډریو له امله نړۍ کې ښه نوم نه درلود خو ددې تړون له لاسلیک نه وروسته ټول پوهیږي چې د کابل اوسنۍ اداره بقا نلري او د افغانستان راتلونکی نظام به افغان شموله اسلامي نظام وي. ټول دیته سترګې په لاره دي، غواړي خپل راتلونکی اقتصادي او سیاسي اړیکې له هغه نظام سره پیل کړي. نو دغو ټولو تحولاتو د کابل رژیم په سیاسي او نړیوال میدان کې تجرید کړی، حتی اوس یې د امریکې سره هم اړیکې همغه شان نه دي لکه چې مخکې وې بلکې تاسې به اوریدلي وي چې د امریکې حکومت یو میلیارد ډالر مرسته پرې قطع کړه او ویلی دي چې یو ملیارد نوره مرسته به په راتلونکې کال کې پرې قطع کړي.

## د عاجزۍ او انکسارۍ سپارښتنه!

**د مکې مکرمې د فتحې په ورځ کله چې رسول الله ﷺ مکې ته داخلیدلو له ډیرې تواضع یې سر مبارک دومره ټیټ کړ، چې ږیره مبارکه یې د اوښ په زین ولګېده،او له سترګو یې اوښکې روانې وې.**

**راځئ چې دا سنت خپل کړو تر لویو خبرو تیر شو تواضع خاکساري او د خپل محبوبﷺ په نقش قدم کېږدو.**

**یو سړي عبد الله بن عمر رضي الله عنه ته ولیکل: خپل ټول علم راته ولیکه!**

**عبدالله بن عمر رضي الله عنه ورته و لیکل علم ډیر زیات دی مګرکوشش وکړه.**

۱- خپلې اوږې د خلکو له وینو سپکې کړه.
۲- خیټه د خلکو له مالونو څخه تشه کړه.
۳- ژبه په خلکو پسې له بدو ویناوو بنده کړه
۴- او د مسلمان له لوی ټولي سره پیوسته شه.

سير أعلام النبلاء ، للامام الذهبي.



سعد کټوازی

# د کب ۱۰ مه د ۲۶ کلن سټري یون د بري ورځ

وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْناً يَعْبُدُونَنِي لا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئاً وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَلِكَ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ... د نور سورت (۵۵) ایات.

هو! مشر ملاصاحب چې نظر یې تل د پښتو پر پایلو و د اشغال په پیل کې یې ښایي همدغه وعده یادوله او همدا دی د اشغال د پایلي په توګه۱۹کاله وروسته پوره شوه، موږ ته الله تعالی بری را کړ او د افغانستان پر خاوره بشپړ واک ته نږدې یو، د اسلام سپېڅلی دین الله تعالی موږ ته خوښ کړی، له پیله هم بېوزله خلکو منلی او بیا پلی کړی او اوس زموږ په څېر بېوزله پرې نازول شوي یو (طوبی للغرباء)، هغه وېره او وحشت چې د۱۹کاله یې دوام درلود، نور پر ډاډ او خوښۍ بدلېدونکی دی، کورني مجرمین هم بښل شوي او نور به یواځې د الله تعالی نظام او بندګي وي، نه به ډیموکراسي او نه به هم د کوم بنده بندګي وي.

لومړی خو د ویاړ ځای دی چې په دې سختو شرائطو او د مسلماني ټولني په دربدرۍ کې الله تعالی د خپل دین د سرلوړۍ او جهاد لپاره موږ ځانګړې کړي او یو بشپړ ملت د کفارو د وحشتونو او تېریو پر وړاندې ولاړ یو، او بیا د شکر ځای دی چې زموږ خواریو، قربانیو، یووالي، د الله تعالی پر نصرت پوخ باور او... ترشایې سپېڅلو ارمانونو ته الله تعالی تحقق ورکړ او د اشغال د خاتمې او۲۶کلن سټري یون د بري ورځې راتلو سره د الله تعالی په دربار کې زموږ د دې هرڅه د قبولیت څرک هم ولګېد.

د۱۳۹۸هـ ش کب۱۰مه، د۱۴۴۱هـ ق رجب۴مه او د۲۰۲۰زېږدیز فبروري۲۹مه د هفتې ورځ په نړیوال تاریخ کې د افغانستان او افغانانو د درېیم تاریخي ویاړ ترلاسه کولو پر نوم ثبت شوه، په دې ورځ او نېټه د امریکا پر وړاندې د افغانانو له۱۹کلنې جګړې، د امریکا د جګړه ایز ماموریت ناکامۍ او له طالبانو سره د یونیم کال مذاکرې وروسته امریکا د خلیج هېواد قطر پلازمېنې دوحې په شیراټون پېنځه ستوریز هوټل کې د خپلې بشپړې ماتې، د افغانستان اشغال پای ته رسولو او افغانانو د ازادي او خپلواکې منلو د رسمي سند په توګه له طالبانو سره تاریخي تړون لاسلیک کړ.

افغانان چې په خپل کور کې غل او جنایتکار ونیسي۔ همدلته یې ښه ټکوي او بیا یې په پرده کې له کوره باسي، هغه چې خپله څومره په دې کار د ځان نوم بد کړی وي، افغانان یې له کوره بهر لازیات نوم نه ور بدوي، امریکا۲۰کاله وړاندې هغه مهال چې ابرقدرت یادېدله لومړی یې له زرګونه کیلومتره لیرې واټن څخه زموږ د هېواد په چارو کې په لاسوهنه خپل نوم بد کړ.

ور پسې یې لازیات نوم هغه وخت بد شو چې د افغانستان په څېر وروستو پاتې هېواد پر ٪۹۵واکمنو طالبانو د پیاده نظام په پلمه یې زموږ پر هېواد یرغل وکړ او په داسي حال کې چې تش لاسي طالبان د امریکا له ابرقدرت سره نه پرتله کېدل بیاهم یې د هغوی پر وړاندې ګرده نړۍ عام له کفري او مسلماني هغې ټوله یې له ځان سره یو قطب کړه، ښایي دوی لیدل چې افغانستان د آمو او فرات سیندونو ترمنځ د وینو هغه څپې دي چې پکې د انګرېز او شوروي دواړه امپراطورۍ ډوبې شوې او لا تر اوسه یې تل کې پرتې دي، نو د یوې داسي غښتلې امپراطورۍ اړتیا یې وه چې دلته یې د ډوبېدو امکان او وېره کمه وي.

اوس چې د ټیکنالوجۍ د وخت دغه تر ټولو ستره صلیبي امپراطوري هم ډوبه، په یوه بې هدفه او خوشې جګړه کې د امریکا قدرت اوبه او ټلواله/ائتلاف یا د ابرو پوزه یې رنګه شوه، اوس هغه د کرکي دوهم نوم ګرځېدلی او خپله پر هغه څه خوشي او بې ګټې اعتراف کوي چې که شل کاله مخکې یې د اعتراف پر ځای یواځې پکې غور کړی وای دا دومره اوږده جګړه او څه چې یې پکې له لاسه ورکړل هیڅ به نه و.

خو ناپوه ته سرې یوه خبره درې ځله تکراروي او ورسره یې سم ټکوي هم، هغه د ملاصاحب خبره چې د خره د پوهاوي ترڅنګ به هغه ټکوو هم چې ویې باسو، نو افغانانو چې د۱۹مې او۲۰مې پېړیو۲امپراطوریو پسې دا دی د۲۱مې پېړۍ امپراطوري هم را نسکوره کړه او د امپراطوریو را پرځولو لړۍ یې پرلپسې درې کړه ابله اوس کفري نړۍ (ملةواحدة) سر خلاص کړ او په سرو مغزو وپوهېده چې که له هره ځایه یې راپیل کړي افغانستان ته په را رسېدو ضرور راپرځي.

د ۲۱مې پېړۍ امپراطورانو د اشغال په پلان کې پر افغانستان یرغل لومړیتوب و چې د دوی پر خیال د افغانستان له بشپړ اشغال وروسته!! به د پاتې پلان پلي کول بې تکلیفه وي، خو دغه کار څه اسانه هم نه و، نو د دې لپاره چې د نوري نړۍ ترڅنګ د یرغل په پلان کې نېول شوي هېوادونه لا هم ورسره بشپړ همکار او د ائتلاف برخه یې وي او بیا به کرار ورسره نمک حرامي وکړي تازه نړېدلې صلیبي امپراطوري یې له افغانستان څخه ور پیل کړه.

خو پر ائتلاف او مادي قدرت غولېدلو ناپوهانو دا له پامه غورځولې وه چې تېري امپراطورۍ خو هم د خپل وخت یواځینی قوت او د افغانانو توان ورسره د پرتلې نه و، نو که سبا دلته د هغو د جوش او جذبې په وېنو کې دغه په پرمختللې ټېکنالوجي سمباله امپراطوري هم غرقه شي بیا...؟! اوس نو چې له پامه غورځېدلي و په عمل کې همغه وشول او له پیل سره سم یې همدلته امپراطوري ډوبه شوه.

غرض طالبانو امریکا په هېواد کې ښه ټکولې، څومره چې هغې خپل نوم بد کړی، نور یې طالبان لازیات نوم نه بدوي او د خوندي وتلو چانس یې ورکړی، طالبان چې۱۹کاله د ترهګرو په نوم ورسره دنیا په یو قطب کې وجنګېده بالآخر په مسلمانه نړۍ کې رښتونې، د هېواد او ملت ارزښتونو ته ژمن او له یو ټول منلي سیاسي ځواک څخه برخمن ازادي غوښتونکی ملي غورځنګ وپېژندل شول، د۳۶هېوادونو او ګڼو خپلواکو او نړیوالو سازمانونو په شاهدۍ کې یې له امریکا څخه د هغې د ماتې، د خپلې داعیې برحق والي، د افغانستان او افغانانو ازادي او خپلواکي منلو د رسمي لاسلیک شوي سند په ډول تاریخي او ستراتېژیک تړون واخیست.

د کب۱۰مې تړون له مخې به هغه۴۰کلنې بهرنۍ لاسوهنې چې له شوروي یرغل سره یې هېواد ته لاره مونډلې وه که په هر نوم او له هرې لارې وي پای ته رسېږي، د امریکا+ناټو ځواکونو له وتلو سربېره به افغانان په خپلواکه توګه د خپل برخلیک او راتلونکي نظام په اړه تصمیم نیسي۔ او په دې ډول به دغه تړون د هېواد په چارو کې د بهرنیو لاسوهنو۴۰کلن ناورین د پای ته رسېدو تاریخي سوبه او کارنامه وي او د یو وروستو پاتې هېواد په حیث له۴۰کاله راسې د جګړو ډګر پاتې شوی هېواد (افغانستان) به هم د مطلقې ازادۍ، خپلواکۍ او سیاسي ځواک په لرلو د امریکا او نورو پرمختللو هېوادونو سیال شي ان شاءالله.

افغانان چې٪۹۹٫۷د اسلام دین منونکي دي، اسلام هم هغه مذهب دی چې وګړو ته یې٪۱۰۰حقونه ورکړي، د بشري ټولنې ټول مصالح او ګټې رانغاړي او بیا افغانانو پر همدې دین۴لسیزې هرډول قربانۍ ورکړې، نو د مسلمان ملت، اسلام او ور کې د وګړو د حقونو بشپړ خوندېتوب او پرې د افغانانو د ورکړو قربانیو غوښتنه هم دا ده چې په افغانستان کې اسلامي نظام وي او پر ځپلو او مظلومو افغانانو د أمن، سولې او سوکالۍ هغه سیوری وغوړوي کوم چې له هره اړخه بشپړ او یواځې د اسلام په سپېڅلي دین کې دی.

که له بهرنیو لاسوهنو پرته په رښتونې اسلامي او افغاني روحیه سوچه اسلامي نظام را منځته، جګړه ختمه کورني او بهرني سیاسي احزاب او ډلې له منځه لاړې شي، نو نه به مو د هغو د ملاتړ او یا پر بل نوم په هېوادنیو چارو کې د بهرنیو لاسوهنو چانس پاتې شي او نه به مو هم خاوره د نورو پر زیان وکارول شي چې د هېواد په نېکمرغۍ او د ولس ډاډ او سوکالۍ کې محوري رول لري او یواځې په هغه صورت کې

ممکن دی چې بشپړه ازادي او خپلواکي ولرو او د اسلام معتدل نظام په بې داغه افغاني روحیه رامنځته شي.

دغه وروستی ټکی که څه هم د طالبانو او امریکا ترمنځ د مذاکراتي بهیر له پیل راسي ډېر پر ژبو اوړي، خو داسي نه ده چې هغه اوس همدې بهیر کې منځ ته راځي، بلکې دا د طالبانو د تېرو دوه نیمو لسیزو د مبارزې له عمده موخو څخه و، که دلته امریکا پښه ټینګه کړې وای زموږ خاوره به یې د نورو پر ورانډې د جګړې یواځېنی سنګر وای، خو طالبانو ورته اجازه ور نکړه او نه به یې کوم بل چا ته ورکړي.

د خپلواک اسلامي نظام د راتلو په تعقیب موږ هغه مهال ته ور ګرځېدونکي یو چې اسلامي ټولنه د تمدن او ښېرازۍ سمبول وه او د نن ورځې لوېدیځ تمدن یې لا تر اوسه پوروړی دی او دا هغه وخت و چې پر بشپړ اسلام مو عمل کاوه، نن هم چې په دا ډول سختو شرائطو او تنګو ظروفو کې د افغانانو د دغه تاریخي ویاړ او یو بېساري بریالیتوب شاهدان یو د همغه جهاد او یووالي له برکته چې متمدن اسلام پرې ولاړ و او بیا د مسلمانانو د غفلت، د پردیو دسیسو، د مزدورو واکمنانو د تطمیع ښکار کېدو او ډېرو نورو لاملونو له وجې پاتې شول چې دا خورا لویه تېروتنه وه او هم ده.

سره له دې چې د شمېر له پلوه مسلمانان تر بل هروخت ډېر دي بیاهم اسلامي نړۍ بشپړ د محکومیت ژوند کوي، د کفارو، مشرکینو، بودایانو، صهیونیانو، هندوانو، خوارجو، روافضو او مزدورو تش په نوم مسلمانو چارواکو له لوري مسلمان ملتونه چې یو یې افغانان هم دي له ډول ډول ربړونو او زور زیاتیو کړېږي، وژل، بندي او شکنجه کول، ژوندي خښول او سوځول، په ژوند ترې اندامونه غوڅول، له مېنو یې شړل، ناموس او عفت یې لوټل، املاک یې تخریب او ترورل او... هر وحشت پرې ترسره کېږي.

په ځینو مسلمانو ټولنو کې د ګوتو په شمېر مجاهدین تر ډول ډول فشار او ګواښونو، غربي اصطلاحي نومونو او حتی د خپلو ټولنو او کورنیو له لوري تر ترټنو لاندې ورسره په مبارزه بوخت دي، خو د طالبانو او په ټوله کې افغانانو له دې حالاتو سره بې پروايي، د وخت شرائطو او ظروفو له جبر څخه یې بغاوت او په یوه دا ډول اندېښمنونکې فضاء کې د هغوی پر لاس تازه۳مې پرمختللې امپراطورۍ را نسکورېدل یوه معجزانه بریا او د مسلماني ټولني د ویاړ یو نوی باب دی چې هغې ته د خوښۍ ستر زېری له ځان سره لري.

د افغانستان اشغال او ازادي دواړه د نړۍ په ګوټ ګوټ کې مسلمانو ملتونو، جهادي غورځنګونو او ازادي خوښو قومونو پر مورال او روحیه تر بل هرڅه ژور اغېز ښېندي، په ځانګړې په داسي حال کې چې نن هغوی ورسره مخ دي او موږ یې لنډه یادونه وکړه، نو د کب۱۰مې د افغانستان د اشغال خاتمې ترون د خوښۍ لومړۍ هغه څرېکه وه چې دوی د محکومیت، ویرونو او دردونو په دغه مهال احساس کړه، د ازادۍ او خپلواکۍ هیلي یې یوځل بیا ورکې را زرغونې کړې، دا الهام یې ترې اخیستی چې لکه څرنګه چې د افغانستان ازادي د مسلماني نړۍ د ورکې ازادي لومړۍ څرک دی زرده چې دوی هم د بریا او خوښۍ پر لور ګام پورته کړي او د دې ښه دلیل د تړون پر مهال او له هغه راوروستو ورځو کې د عربي او هم نوري اسلامي نړۍ د رسنیزو فعالانو او لوړو اشخاصو ګرمې مثبتې تبصرې او د خوښي څرګندونې دي چې د طالبانو پر نبوي سنت برابر صورت او سیرت، ایماني قوت، مېړانې او شهامت، سرلوړي او پر هسکه غاړه ازادي اخیستلو او روڼ راتلونکي په اړه یې درلودې.

د کب۱۰مې د افغانستان د اشغال خاتمې تړون د مسلمه امت د مشترکې بریا په توګه د نړۍ محکومو مسلمانانو ته له ځان سره دا پیغام لېږدوي چې لکه څرنګه چې کابو یوه پېړۍ وړاندې له برطانیې د افغانستان خپلواکۍ د هغه وخت په محکومو ملتونو کې د استقلال روح پوکلی او هغو ته یې د ازادۍ یوه نوې روحیه بښلې وه، د کب۱۰مې تړون هم محکومو ولسونو ته ښیي چې که په رښتونې مانا خپل دین عملي کړو، د وخت له شرائطو سره د مقابلې له هري ممکني طریقې کار واخلو، خپل منځي یووالي او غوره رهبري ته پوره پاملرنه وکړو چې د طالبانو پر تقلید تر پخوا ډېر اسانه شوي، نو هغه شپې نږدې دي چې ټول له دغه محکومیته را ووزو او د بشپړې ازادۍ او خپلواکۍ څښتن شو...

په همدې هیله... پای!

# دکرونا وایروس په وړاندې!

## د ساینس او ټیکنالوجۍ شکست!

همدرد

نن سبا په ټوله نړۍ کې دکرونا وایروس په نوم دیوې لویې اوپراخې وبا غوغا خوره ده، اوتردې شیبو په ټوله نړۍ کې نیږدې درې لکه انسانانوربانديې اخته شوي، او د۱۳زره نه زیات کسان یې له امله مړه شوي دي

دنړۍ په کچه ترټولو زیات کسان په ایټالیا کې وژل شوي دي، هلته دټولو وژل شویو کسانو شمیرپنځه زره ته رسیدلی دی چې دا په چین کې دوژلوشمیرنه هم زیات دی

امریکا او هند دمارچ د۲۲ مې نیټې نه دیوې اوونۍ لپاره خپلې ټولې نړیوالې الوتنې ځنډولې، اروپائي ټولنې ۳۰ ورزو لپاره داروپائي اتحادیې د غړوهیوادو پرته دنورو هیوادوڅخه د ورتلونکو مسافرینو په وړاندېدخپلو پولو دروازې تړلې

امریکا کې تردې وخته په کروناوایروس داخته کسانو شمیر له ۲۵ زره اوښتی او واشنګټن له خپل هیواده بهر ته دخپلو اتباعو په سفربندیز لګولی دی

داسترلیا په دوه لویو ښارونو (سډني اوميلبرن) کې په راتلونکو ۴۸ ساعتونوکې په ټول کاروبار بندیز لګول شوی زکه هلته هم په کرونا ناروغۍ داخته ناروغانو په شمیر کې په تیزۍ سره اضافه راغلې دهند صدراعظم نریندر مودي هم پخپل هیوادکې بیړنی حالت اعلان کړی او ګرځبندیزیې لګولی دی څو په دې توګه دکروناوایروس له خوریدو مخنیوی وکړي، دامریکا متحده ایالاتو ټولو پنځوس ایالتونوته کرونا وایروس رسیدلی دی اوحکومت د بیړني حالت په پلي کولو غور شروع کړی دی او ممکن هلته هم یومخ ګرځبندیز ولګول شي دنیویارک ښاروال اعلان کړی دی چې په دوه ورځوکې دننه به په دې غور وکړي چې دښار۸، ۵ملیونه وګړي دې په کورونوکې پاتې شي که نه! دهغه په وینا: دایوه ډیره سخته پرېکړه ده چې موږ پخوا ورسره مخ شوي نه یو

برتانیا کې هم حالت ترینګلی دی، دژوند چارې په ټپه ودریدلې چې په سبب یې سوداګروته درانه زیانونه اوښتې دي ډیری مزدوران له کارونو فارغ کړل شوي دي،

دنړۍ هغه محفوظ او خوندي هیوادونه چې په نړۍ کې یې مثالونه وړاندې کیدل، نن هغه خوندي ندي، او په هغو کې ترټولو ډیر خلک په کرونا ویروس اخته شوي دي

هغه امریکا، اروپا اوچین چې پخپله عصري ټیکنالوجۍ اوساینس به یې نازکاوه، او د هرډول بیړیو حادثاتو سره یې دمقابلې دعوې کولې نن هغوی دخدای تعالی په قهر کې داسې راګیر دي چې دخپل نجات لارترې ورکه ده په افغانستان اوپاکستان کې هم بیړنی قسم وضعیت دی، ایران اوچینپه پیل کې کرونا ځپلي، عربي نړۍ کې دومره بیړنی حالت اعلان شوی چې آن په حرمینو شریفینوکې هم دپنځه وخته جمع په لمانځه او دخلکو په ورتګ بندیزلګیدلی، او هم دجمعې ورځې لمونځ کې دخلکوپه ګډون بندیزاعلان شوی دی

داسې ښکاري په ټوله نړۍ کې دالله تعالی لخوا یو عظیم امتحان راغلی دی، اونړۍ له یوه سر ه تربله سره ددې سترې وبا ښکارګرشوې له هیڅ هیواد سره دعلاج لپاره درمل نشته دا هغه ځای دی چې دانسان علم پای ته رسي، هغه هیوادونه چې دمادي وسائلوپه اعتبار یې داسمان سره خبرې کولې نن د یو کوچني وایروس په قابوکولوکې ځانونه بیوسه اوناکام بولي، هغه هیوادونه چې په ساینسي پرمختیاوویې زمکه اوفضا دواړه مسخر کړي هغوی ددې واړه وایروس په کنټرول کې خپله عاجزي ښیي هغه ټیکنالوژۍ چې پر مټ یې دنړۍ پرمختللو هیوادونودزمکې اوفضا ترمنځ دوحشتونو او ظلمونو غرونه نړول نن هغوی دیو کوچني وایروس په عذاب کې په مبتلی کیدو سره چیغې او کوکارې وباسي

هو! الله تعالی غوښتل چې دساینس اوټیکنالوجۍ ټول غرور ختم کړي! دټیکنالوجۍ اوسایسن شور اوزوږ خاموش کړي نو دنړۍ دیوډیرمترقي هیواد چین داوهان ښارنه یې یو وړوکی وایروس را پورته کړ، په لږ وخت کې یې دنړۍ له یو سل اتیا څخه ډیرو هیوادوته خورکړ او په لکونوانسانان پرې اخته شول الله تعالی دانسان ټول غرور مات کړ او ورته یې دا وښوده چې انسانه! ستا دغرور ماتولو لپاره دومره کوچنی وایروس بس دی!! چې هغه له لیدلو ټیکنالوجې عاجزه ده، نوپوی شه! چې ددې کائنات حقیقي واک دانسان سره نه بلکې دانسان دخالق سره دی او هم هغه په کائنات کې دهر څه متصرف او مالک دی

بیشکه! الله په هرڅه قادردی اودومره قدرت لري چې په یو وړوکي وایروس یې ټوله نړۍ ولړزوله نو الله تعالی به یوه ورځ داسترې سترې ماڼۍ او اسمان څک برجونوو نړوي او دبشریت دصلاحیتونو ټول غرور او دبدبه دخاورو سره ګډه کړي

نو انسان دي خپله هستې وپيژني چې دومره کمزورې اولړزانده ده چې د الله تعالی دیوکوچني مخلوق کرونا وایروس په وړاندې دتم تاب نلري نو ورته سملاسي دټولو ګناهونو، کفریاتو او شرکیاتوڅخه توبه ویستل پکاردي او دالله تعالی داحکامو او درسول الله صلی الله علیه وسلم د لارښوونو سره دموافق ژوند تیرولو کلک هوډ پکاردی هو! همدا عزم او عمل دبشریت دنجات اوبري ضامن دی.

## صالحه مېرمن

د خاوند او میرمن ترمنځ څه جنجال او اختلاف پیدا سو، د ښځې په سترګو کې اوښکې راغلې او ژړل یې...

په دې وخت کې دښځې مور او پلار راغلل دروازه یې وټکوله،

دا ولاړه سوه او دروازه یې ورته خلاصه کړه.

هغوی چې کله ددې سترګې په اوښکو لمدې ولیدې نو دسبب پوښته یې وکړه؟؟

ښځې وویل: په دې ورځو کې مې ستاسو لیدو ته ډېر شوق وو ، اوس ناسته وم او دا مې تلوسه وه چې تاسو مې لیدلي وای او له همدې امله مې ژړل؛ نو الله ته دې حمد وي چې سره یوځای یې کړو !

خاوند دخپلې مېرمنې خبروته ته غوږ و، چې هغې څه ډول دخپل کور او خپل خاوند رازونه پټ وساتل... هغې خپل خپلوانو ته هیڅ شکایت ونه کړ او دهغوی توجه یې بلې خوا ته واړوله،

نو دې ښځې د خاوند په زړه کې ځای پیداکړ.. او نور یې خپلمنځي اختلاف حل سو، سوکاله او خوشاله ژوند ته یې ادامه ورکړه.

عبد الله بن عمر رضي الله عنهما روایت کوي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

" الدنیا متاع، وخیر متاع الدنیا المرأة الصالحة".(صحیح مسلم، باب الوصیة بالنساء)

ژباړه: دنیا اسباب (او د ګټې) ځای ده او غوره یې نیکه او صالحه ښځه ده.

الله عزوجل فرمایي"هُنَّ لِبَاسٌ لَكُمْ وَأَنْتُمْ لِبَاسٌ لَهُنَّ.. (سورة البقره:۱۸۷)

ژباړه: هغوی ستاسي جامه (پوښاک) دي او تاسې د هغوی جامه یاست.




# د شهید قاري نظرګل (صادق) رحمه الله ژوند ته لنډه کتنه

لیکوال: حماس پرواني

ژوند که هر څومره ډیر وي او یا کم وي لوي خدای جل جلاله یې چاته ورکړې هغه ډیر لوي او درونـد امانـت وي، دنیا ته انسـان راتلـل نعمـت دی بلـې خـوا ورسره ازمـوینې، سـختۍ، مشقتونه او هر ډول خوږې او ترخې ورسره وي خو کـه چیرتـه خپل دغه خوږ او امانت ژوند چا د خپل دین او اسلام پـه فکـر، نفاذ، جهادونو او نورو دیني فعالیتونو کې تیر کړ دا بیـا د هغـه د بریالیتوب او نیمکرغۍ سبب کیداشي چې الله جل جلاله به یې په راتلونکي ربښتونې زنده ګۍ کـې پـرې خپـل دغـه نیـک بنـده نازوي دغه امانت او فلسفه یې په دې نړۍ کې په ټاکلې نښتـه لـه سپارلوسره سم پای ته رسیږي او بیا نه تکراریږي.

شهید قاري صاحب نظر ګل صـادق رحمـه اللـه یقینـا چـې صادق و هغه د همت، اسـتقامت، ایثـار، شـجاعت، وفـادارۍ او اسلامي امارت سره د ژمنتیا لوی غر و.

نوموړي په خپل نیم ځان د امریکایي یرغل ټول کلونـه پـه عملي ډول سنګر کې تیـر کـړل، شـهید قـاري صـاحب پـه خپلـو ملګرو کې خورا لوړ ځای درلود، خپلو د صـف ملګـرو سره بـه یې نهایت ډیر اخلاص شفقت او همدردي درلودله.

شهید قاري نظر ګل صادق رحمه الله هم د یـو مجاهـد پـه توګه له پوره بریالیتوب سره د ژوند دغه درونـد امانـت ترټـاکلې مودې په مخ یو وړ او د شهادت په ترلاسه کولو یـې بیرتـه خپـل څښتن تعالی ته وسپاره، الله جل جلاله دې دغه دائمي ژوند ورتـه ښایسته او د عقبی له نیمکرغیو ډک کـړي. زوکـړه شـهید قـاري صاحب نظرګل (صادق) رحمه الله د دلاور خان زوی، دپاچا میر خان لمسی په لوي قوم کې احمدزئ په ۱۳۵۴هجـري لمریـز کـال کې دپروان ولایت د کوه صافي ولسوالۍ د احمدزیو په کـلي کـې په یوه دینداره کورنۍ کې سترګې فاني دنیا ته لوڅې کړې.

زده کـړې شـهید قـاري صـاحب نظرګـل (صـادق) خپلـې لومړنۍ زده کړې د هجرت په ټـاټوبي پاکسـتان خیـبر پښـتونخوا ایالت د صوابۍ د برکي په کیمپ کې پیـل کـړې چـې د عصرـي زدکړو ترڅنګ یې دیني زده کړې هم کـولې، عصرـي زده کـړې یې په ۱۳۶۴ هـ ش کال کې پیـل کـړې ترلسـم ټـولګي پـورې پـه همـدې کیمـپ کـې د کمیشـنرۍ ښـوونځي کـې چـې د کمشـنرۍ ښوونځي په نـوم یادیـده ورسـولې او پـه سـیمه یـزو مدرسـو او د مسجد په کلیوالي حلقو کې یې دینـي زده کـړې هـم تـر شـپږمې درجې پورې وویلې، د دیني او عصري زده کړو تر څنګ یې پـه همدې موده کې د قرآن کریم شپاړس سپارې هم یادې کړې او بیـا پاتې دولسم ټولګی یې د ننګرهار ولایت مرکزي لیسې کې بشپړ کړ او له دولسم ټولګي څخه یې په ۱۳۷۴ هــ ش کـال د فراغـت ویاړ هم په همدې لیسه کې ترلاسه کړ.

په دغه وخت کې د اسلامي امارت غورځنـګ پیـل شـوی وو چې دی له دولسـم ټـولګي څخـه فـارغ شـو ی و شـهیدقاری صاحب نظرګل (صادق) رحمـه اللـه چـې د ننګرهـار د مرکـزي لیسې څخه نوی فارغ شوی و پـه همـدې ۱۳۷۴ هــ ش کـال سـم دستي ولاړ او د دغه سپیڅلي غورځنـګ لـه بهیـر سره پـه میـدان ښار کې یو ځای شو او د شهید ملا مشر رحمـه اللـه تـر مشرۍ لاندې یې د شر او فساد د وسله والو عناصرو په وړاندې یې خپله مبارزه پیل کړه.

له یو څه مودې وروسته چې بېرته د کور په لـوري روان و په پغمان ولسوالۍ ک دسیاف ملیشو لـه لـوري ونیـول شـو درې میاشتې هلته اسیر پاتې شو دوی ورسره کوم ښـکاره ثبـوت پیـدا نکړ بالاخره بیرته یې خوشې کړ.




بیا د اسلامي امارت تر سقوط پورې په مهمو او لوړوپوستونو کې په جهادي فعالیتونو بوخت و چې من جمله د یو څو هغو فعالیتونو او غتو خدمتونو یادونه کوو چې دوی د خپلې مبارزې په وخت کې يې پکې مسئولیتونه اداء کړي:

د کابل له فتحې څخه وروسته دکابل ولایت د شکر درې ولسوالۍ په لومړۍ کرښه کې یې د نظامي محاذ مسؤلیت په غاړه و، بیا چې کله خطونه وړاندې ولاړ شمالي سیمې فتحه شوې د بګرام د دوسرکې اړوند د ماشین آب په سیمه کې یې هم خپل محاذ ځای پرځای کړی و او مسئولیت یې هم خپل پر غاړه و، همداراز بیا ترپایه په لومړیو کرښو کې په ګرمو سنګرونو او سختو جنګي او نظامي حالاتو کې په سپېڅلې مبارزه پاتې شو.

د امریکایې یرغل په لومړیو د سقوط په مهال یې د باګرام ولسوالۍ اړوند دقلعه نصرو په سیمه کې د ځمکنې ماین په چاودنه کې تپي شو د تپي کیدو په وخت کې یې خپله ښپه پښه له لاسه ورکړه او دسقوط تر شیبو پورې په کابل کې د سردار محمد داود خان یا (څلور سوه بستریز) روغتون کې په بستر کې له درملنې لاندې و.

داسلامي امارت دسقوط څخه وروسته شهید قاري صاحب نظرګل صادق، ګاونډي هیواد د پاکستان خیبر پښتونخوا ایالت د (وچ نهر) یا دشمشتو کمپ ته هجرت وکړ د وخت څخه یې په ګټې اخیستو یې په شمشتو کیمپ کې د مرحوم شیخ محمود شاه تیلوي صاحب څخه د نبوي حدیثو دوره ترسره کړه.

او همدا رنګه یې په همدې جریان کې د خپل جهادي مبارزې په نه ستړې کېدونکې بهیر کې په بیلا بیلو پوستونو او مسئولیتونو کې خپل خدمتونه ترسره کړل.

یوې خوا چې قاری صاحب سره د اسلامي امارت د مشرانو پوخ ملاتړ و د نومړي اخلاص او وفادارۍ هغوي نمایانې وې بشپړ اعتماد یې پرې درلود نو د لزوم له مخې یې مختلف او مهم مسئولیتونه ورپه غاړه کړل او په ښه امانت دارۍ اودیانت دارۍ یې ترسره کړل.

لومړی: شهید قاري صاحب (۳) درې کاله دپروان ولایت لپاره مرستیال پاتې شو.

دویم: شهید قاري صاحب (۷) کاله د پروان ولایت د نظامي کمېسیون د مسئول په توګه خدمت ترسره کړ.

دریم: یو کال د پروان ولایت د نظامي کمیسیون د مسؤل په حیث دنده لرله.

څلورم: تېرکال ورته د مشرانو د په هغوی باندې د قوي اعتماد په برخه کې د کاپیسا ولایت د نظامي کمیسیون د مسئول په حیث وټاکل شو چې بالاخره د ۱۴۴۱ هجري قمري کال د ربیع الثاني د میاشتې په (۲) مه نېټه چې د ۱۳۹۸ هجري شمسي د (د لیندۍ) یا د قوس د میاشتې له (۸) مې او د ۲۰۱۹ میلادي کال د نوامبر د میاشتې ۲۹ مې نیټې سره سمون خوري د جمعې مبارکې په شپه (۷) بجې وې چې د امریکایي ښکېلاکګرو د ډرون یا بې پیلوټې په برید کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید.

نحسبه کذالک والله حسیبه---إنا لله وإنا إلیه راجعون

# د ماشومانو ستونزې او د حل لارې!

ژ: م عبدالله

۱ - ستا ماشوم دروغ وايي؟

حل: هغه ځان ته نژدې کړه او ډاډ ورکړه، ماشوم پوهاوه د ويرې او ډار په وخت کې دروغ وايي او يا که چا تهديد کړی وي، د سلامتيا ډاډ ورکړه، بيا يې په رښتياويلو وستايه !

۲ - ستا ماشوم عناد کوي؟

حل : د هغه د عناد په وخت کې له هغه سره عناد مه کوه، بيا چې هغه څه ويني ، همغسې عمل کوي، هغه سره زياته مينه وښيه او غېږ کې يې واخله!

۳- ستا ماشوم ټول ښوريږي؟

حل: په محرکو (ډېرو حرکت لرونکو) کارونو او مستيو يې مصروف کړه، لږ وربانډې ښه خواږه کم کړه، ځکه پدې سره دهغه مستي کميږي او مسئوليتونه ورته وسپاره!

٤ - ستا ماشوم سم خوراک نه کوي؟

حل: کله چې خوراک باندې لوبې کوي، يا جنګ کوي، مه ورته غوسه کيږه، او خواږه ورته په رنګينو ميوو ښايسته کړه!

٥- ستا ماشوم نور واړه ورونه وهي؟

حل: له ورو ماشومانو سره يې فرق مه کوه، ستا مينه بايد دوی ټولو ته يو برابر وي، له يوه ماشوم سره د زړه مينه دې بل ماشوم ته مه ښکاره کوه!

٦ - ستا ماشوم په اليکتروني لوبو مين دی؟

حل: په تدريجي توګه يې په لوبو کولو کې وخت پرې کموه، په يو وار يې مه محرومه وه، بيا به نور هم زړه وربانډې وبايلي، ته به يې منعه کوې ، هغه به ذېل کوي.

۷- ستا ماشوم ډېر بې کاره الفاظ استعمالوي؟

حل: په نرمه يې پوه کړه، په هغه چغې مه وهه ، دا ورته ووايه چې د خبروپاکوالی دزړه پاکوالي ښيي ، کوشش وکړه چې اصلي سرچينه يې معلومه کړئ چې چا ورښوولي.

۸- ستا ماشوم لمونځ نه کوي؟

حل : دالله تعالی محبت او نعمتونه ورته ذکر کړه او دا شعور ورکړه چې ټول نعمتونه چې پدې کې روپۍ هم دي، چې په هغې سره د لوبو شيان يا حلوی اخيستل کيږي، ټول د الله تعالی لخوا دي.

۹-ستا ماشوم ګوتې څټې يا په خوله نوکان پرې کوي؟

حل: ماشوم دې د سلامتۍ ډاډ ته ضرورت لري، هغه خامخا يوداسې څه نه ويريږي چې هغه يې تهديدوي.

۱۰ - ستا ماشوم ژر غوسه کيږي؟

حل: خپل پام ورڅخه مه اړوه او دهغه په غوسې مه غوسه کيږه، دا ور وښيه چې د غوسې په وخت کې دې اودس کوي، ورته ووايه چې آرام شه ، بيا به سره ګورو.

۱۱ - ستا د ماشوم شخصيت کمزوری دی؟

حل: هغه ته اعتماد ورکړه، مسئوليتونه ورته وسپاره، د سلامتيا ډاډ ورکړه، هغه ته دا شعور مه ورکوه چې شخصيت يې کمزوری دی، دهغه صفات بيان کړه، د ورزش کلب ته يې داخل کړه، دهغې هم په نفس او جسم ډېر لوی اثر وي.

۱۲ - ستا ماشوم کې که لاندې علامې ښکاره شي :

په درسونو کې لټي، ناڅاپه چوپتيا، د نوکانو چيچل، له خلکو وېره؛ حل: دا ټول کله له سخت ناروا وهلو او تجاوز له وجې وي. (چې

ورته پام مو وي، د بچي په هکله کله ډېر سترظلم کيږي).

۱۳- ستا ماشوم په خبرو کې نښلي؟

حل: دهغه صفت وکړه، تشجيعي خبرې ورته وکړه، چې څه وايي په هغې پورې مه خانده، يا يې د اعصابو ډاکټر ته وښيه چې د خبرو کولو ستونزه په ګوته کړي.

۱٤- ستا ماشوم ستا لاس او سر نه ښکلوي؟

حل: لومړی ته دا کار وکړه، دهغه سر ښکلوه، تردې چې هغه به يوه ورځ لدې سره عادت شي او ستا لاس او سربه مچي کوي.

۱۵- ستا زوی غلا کوي؟

حل: د غله او ډاکو په نومونو يې مه نوموه!! بلکې هغه په ګوښه کې پوه کړه، نصيحت ورته وکړه چې له دې کاره لاس واخلي، او هغه اسباب او وسائل يې وپلټه چې ولې يې غلا ته مجبور کړی، بيا دهغې علاج وکړه، ټول مادي او معنوي ضرورتونه يې پوره کړه ، بيا به غلا نه کوي.

۱٦- په زوی دې د بلوغ علامې راڅرګندې شوې؟

د طهـــارت آداب ورونښـــيه او پرځان باور ورته زيات کړه، د هغه په مخ ،پذې، اواز پورې ملنډې مه وهه، او دا وضاحت ورکړه چې نوموړی د خپلو اخلاقو او سلوک مسئول ګڼل کيږي.

۱۷- ستا د ماشوم سبق نه زده کيږي ؟

حل: مخکې له دې چې مشکل غټ شي، فورا بايد د اعصابو او دماغو معتمد ډاکټر ته وښودل شي.

۱۸- ستا بچی ښځونوکی شوی، مطلب دښځو خويونه پکې راغلي؟

حل : له نجونو سره يې په تدريجي ډول ناسته ولاړه بنده کړه، د سړيو په مجالسو کې يې کينوه او له معتدل خشونت سره يې عادت کړه او که په ښځو کې سړيو ته ورته خويونه پيدا شول ، نو بالعکس عمل ورسره وکړه!

۱۹- ستا ماشوم زېل (ضد) کوي او د خوب په منځ کې په چيغو شي؟

حل: د چغو پرځای! ښه په نرمه په سر لاس ورکش کړه، خوږ او ښايسته نوم ورته واخله، آرام سره آيت الکرسي پرې چف کړه.

۲۰-ستا ماشوم د لوبو په وخت کې چيغې شروع کړي؟

حل: په سترګو کې ورته سترګې ښخې کړه، او ورسره وغړېږه چې څه غواړي، ترڅو چوپ شي مګر هغه بايد احساس نه کړي چې زما غوښتنه يې ورڅوله.

۲۱- که په مکرر ډول دا طريقه استعمال شي: مثلا ورته وويل شي: چې که زما دا خبره دې ومنله يا دې دا کار وکړ، نو تاته به دومره روپۍ يا به انعام درکړم؛ دا ډول عمل ماشوم د خپل ګټې او ذاتي مصلحت غوښتلو لور ته سوق کوي، بيا به هغه په کمزوري رشوت عادت کيږي، او په هرڅه کې به اشتقاق کوي، چې دا به دده لپاره په راتلونکې کې ډېر بد وي.







مفتي محمدگل سعید

# دصدئ تر ټولو لوی زیری او تاریخي خبر

خوشحال بابا وایي:

لا تر اوسه يې ماغزه په قرار نه دي * چا چې ما سره وهلـی سر په سنګ دی

همدارنګه وایي:

ټيټ مې مه بوله غورځنګ راباندی مـه کـړه * زه پـه دې آفتـاده ګی کې لوی ګړنګ یم

دروان کال ( ۱۳۹۸ هـ ش کال چې د ۲۰۲۰م کال دفبروري له ۲۹) سره سـمون خـوري، د کـب پـر لسـمه د امریکـا او طالبـانو ترمنځ د سولې توافق رسـما لاسـلیک شـو. مـوږ د تـاریخ پـه حکـم ویلای شوچې ددغه توافـق سره سـم بـه هیـواد تـه ان شـاء اللـه یـو سپیڅلی اسلامي نظام ، امن او دائمـی اسـتقرار راوګرځـي. دامریکـا سره د اشغال د ترون دخاتمې په ورځ دالله اکبر اوازونو د آسمان په کنارو کې انګازه کوله. هلته په لسګونو د تورو ږیـرو او تـورو پګړیـو خاوندان خپل رب ته په سجده پراته ؤ. په جمعه يې لمونځ ادا کاوه، سپین بیرغونه یې په لاسونو کې نیولي ؤ

او د ترون په هوډ د هوټل په لـور رهـي ؤ. ددوی پـه مخکـې هماغه دښمن ؤ چې څو کاله مخکې یې د نړۍ ګرد کفري ځواکونـه لـه ځـان سره اشر کـړي ؤ او پـه دې هـوډ راغـلي ؤ، چـې مـوږ بـه دځمکې له مخ نه د تورې ږیرې او تور پګړي خاوندان ورک کړو. دا دافغانستان غرونه او صحراوې نه وې، بلکه د قطر هیـواد ؤ، چـې په فائیو ستار هوټل کې يې د امریکـا غـرور لـه خـاورو سره خـاورې شو. چاوګټله او چا وبایلله؟ دا فیصله ډیـره اسـانه ده ، تاسـو خپلـه قضاوت وکړئ چې د غرونو تر اتلانو پورې د مذاکراتو دا پیغـام چـا ورساوه؟ له معاهدې څخه وروسته د خوشالۍ او تکبیر آوازونـه چـا پورته کړل؟ دعالمي میډیا تمرکز پر چا ؤ؟

آیا له کـوم امریکـایي سره هم چـا پـریس کـانفرس کـړی دی؟ هوکې؛ ددغو درویشانو او د تورپګړیـو تـر شـا د ګـردې نـړۍ میـډیا څرخیدله . د هغوی یو یو لفظ یې اوریده او هـر یـوه ژورنالیسـت دا کوښښ کاوه چې له دوئ سره انټرویو وکړي.

دا دددې صدئ تر ټولو لوی زیری او تاریخي خبر ؤ. هغه سپر طاقت چې له پنځوسو زیات نور سیالان هم ورسره راغلي ؤ ، پـه یوه اسلامي هیواد یې حمله وکړه او په زرګونو عالمان او طالبان یـې په شهادت ورسول. دوئ ته هغو درویشانو ماتې ورکړه چـې هغـوی سره هیڅ مرسته نه ، بلکه په ښکاره یې ورته د دوستۍ لاس هـم نـه ورکـاوه. هماغـه درویشـان په ډیره میړانه او عالي مورال وجنګیـدل ، خپل همت یې له لاس ورنکړ او تر اخري سلګۍ پورې یې د معرکـې میدان په خپلـو وینـو تـود او ګـرم وسـاته، بـالاخره یـې خپـل مغـرور فرعوني دښمن ځانته پـه ګونـډو کـړ. دغـو درویشـانو نـوولس کالـه مسلسل جهادونـه ، قربـانۍ ، تکلیفونـه ، بنـدي خـانې او محبسـونه وګالل ، خو نه يې حوصله له لاسه ورکړه او نه یـې خپـل لـوړ همـت وبایله. د امریکې اقتصاد یې په صفر بدل کړ او هغوی یې تیښـتې تـه اړ کړل. دا یواځې د امریکې شکست نه بلکـه د دګـردې کفـري نـړۍ ماتې وه.

طالبه! ستا میړانې ته سلام؛

د ګردې نړۍ مسـلمانان بالخصـوص افغانـان بـه دې کلـه هـم قربانۍ هیرې نه کړي، د نړۍ د ټولو مسـلمانانو پـه غـاړه کـې سـتا د احسان رسۍ پرته ده.

# محترم الحاج خليل الرحمن حقاني

**مذاکراتي ټيم په ډيري ميړانې، سياسي بصيرت او د واحدې رهبری په چوکاټ کې له امريکايانو سره دافغان ولس دفتحې تاريخي سند لاسليک کړ.**

بسم الله الرحمن الرحيم

**د هيواد نوميالی جهادي او قومي شخصيت الحاج خليل الرحمن حقاني صاحب!**

**پوښتنه: د حوت په لسمه نيټه د قطر مرکز په دوحه کې له امريکايانو سره د اشغال د خاتمې تړون اسلامي امارت لاس ليک کړ. ستاسو په فکر کوم هغه عوامل وو چې امريکايان يې چمتو کړل تر څو د خپلو ټولو پخوانيو خودخواهيو او زبرځواک څخه تير شي. د افغانستان د خلکو ديني او ملي ادارې ته غاړه کيږدي.**

ځواب: بسم الله الرحمن الرحيم الحمد لله رب العالمين و العاقبة للمتقين والصلاة والسلام على رسوله الكريم اما بعد!کوم سوال چې تاسې کړی دی زما په نظر د دې څو عوامل دي.

۱: د قران عظيم الشان د نصوصو او د رسول الله (ص) د احاديثو څخه معلومه ده چې کله هم کافران، يهوديان او نصاری او مشرکين په مسلمانانو يا د مسلمانانو په خاوره باندې تجاوز وکړي او مسلمانان د جهاد مقدسه او پاکه لاره ونيسي نو دغه اشغالګر کافران به ضرور شکست خوري. شا ګرزونکي. مال مصروفونکي او افسوس کونکی به وي. الله تعالی فرمايي: والذين جاهدوا فينا لنهدينهم سبلنا و ان الله لمع المحسنين. (الايه)

يعني هغه کسان چې زموږ په لار کې جها کوي نو موږ به هغوی ته د خپلې لارې هدايت وکړو او بيشکه الله تعالی د نيکي کونکو سره دی.

په قران کريم که د کافرانو د شکست ډير مثالونه موجود دي. نو د افغانستان مجاهد ولس د اسلامي امارت د قيادت لاندې د جهاد لاره ونيوله او په ډير ښه نيت يې جهاد وکړ نو دا د دې لامل شو چې امريکايانو شرمېدونکی شکست وخوړ.

۲: د امريکايانو د شکست دوهم عامل د مسلمانانو کله عقيده او د مجاهدينو هغه فدايي عمليات او قرباني چې د امريکايانو په قيادت کې د نړي ټول کفري هيوادونه او موجوده زبرځواک يې مخ نيوی ونشو کړ او د مخنوي لپاره يې ناتوانه وو. نو دوی ونشو کړی چې د مجاهدينو د فدايي علمياتو مخ نيسي فلهذا د کافرانو قوي او غښتلې او پرمختللې ټکنالوجي ، اقتصادي. تبليغاتي او جاسوسي ټول عصري منابع د فدايي حملو په مخ کې ناکامه شول. چې دا د امريکايانو دشکست او د ياد تړون عمده لامل وو.

۳: دريم عمده عامل يې د فدايانو منظم معسکرات جوړول وو چې په دغو معسکراتو کې د جهادي بهير ښه مديريت، ښه رهبري او د مجاهدينو کامل اطاعت وو چې په نتيجه کې د دغو معسکراتو څخه د منظم مديريت په اساس په دښمن منظم فدايي عمليات وکړل چې د دوی غټ غټ فوځي مراکز سره ده پرمختللې او عصري ټکنالوجي په کامله توګه له منځه ولاړل. چې امريکا يې مجبوره کړه چې دا موجوده سند له اسلامي امارت سره لاس ليک کړي.

۴: څلورم عامل زما په نظر د افغانستان اب و هوا (جغرافيه) او د افغان ولس جهادي عقيده وه چې دا د دې عامل شو چې امريکايانو د شکست سره مخامخ شول ځکه چې دې هيواد ته هر څوک چې راغلي دي نو هغوی د همدغه

جغرافیې او د افغان ولس جهادي عقیدې له کبله خپلې ککرې دلته پرېښې دي او له دې ځای څخه یې تیښته کړې ده.

۵: د امریکایانو اصلي هدف افغانستان نه وو بلکې د سیمې د نورو هیوادونو لکه ایران، چین. عربي او د منځني اسیا هیوادونه وو چې امریکایان به دلته په افغانستان کې خپلې منګولې خښې کړې او له دې ځای څخه د نورو هیوادونو ته قسما قسم تحدیدونه متوجه کوي. او خپلو اصلي موخو او هدف ته به ځان رسوي مګر کله چې امریکایان دلته په افغانستان کې د مجاهدینو او د افغان مجاهد ولس د مقاومت سره مخ شو. نو دوی پوهه شول چې خپلو اصلي اهدافو ته لاس رسی نه کیږي. او په افغانستان باندې د دوی د حملې زیات تاوانونه دوی ته متوجه وو او خپل اصلي اهداف یې تر لاسه کولی نشوی نو ځکه دوی په ناچاری سره د مذاکراتو میز ته کیناستل او خپله ماته یې ومنله.

**پوښتنه: جناب حاجي صاحب!**

**تاسو به ټرون مطالعه کړی وي د اسلامي امارت سیاسي استازو او مذاکراتي ټیم په نوموړی ټرون کې تر کومه حده د افغانستان مجاهد د غوښتنو دفاع او تمثیل کړی؟**

که د اسلام ټول تاریخ وکتل شي. په ټوله نړی کې د افغانانو په څیر قرباني چا نه ده ورکړې. په تیره جهادي دوره کې یې د نړې زبرځواک شوري مقابل جهاد کې ۱۵ لکه شهیدان ورکړل. او اوسنی زبرځواک امریکا او ورسره ناټو مقابل جهاد کې ۳ لکه شهیدان ورکړل. په ټوله نړی کې د داسې ډېرو منظمو کفري هیوادونو مقابل کې جهادي ډګر کې دریدل او بیا شکست ورکول د دې ساری په اسلامي تاریخ کې نه لیدل کیږي. دا ټوله قرباني د دریو اهدافو لپاره وه.

**اول.** د اشغال ختمول.

**دوهم:** د اسلامي سوچه نظام راوستل اوحاکمول.

**دریم:** د واحد آزاد او خپلواک افغانستان ساتل.

نو زمونږ په نظر د همدغو اهدافو د لاسته راوړلو لپاره په ټوله اسلامي نړی او تاریخ کې دومره زیاته قرباني هیچا نه ده ورکړې او نه دومره شهیدان چې مخکې یې یادونه وشوه د افغانانو نه پرته هیچا نه دي ورکړي.

د همدغو قربانیو نتیجه وه چې نن د ټولې دنیا کفري قوتونه د افغانستان اسلامي امارت د سیاسي مذکاراتي ټیم سره په مذاکراتي میز کیناستل. او د تاریخ دا مهم سند یې لاسلیک کړ. او خپله تسلیمي او شکست یې قبول کړ. او مذاکراتي ټیم په ډېر میړانې او سیاسي بصیرت د واحدې او ښې رهبری او د اطاعت په چوکاټ کې یې امریکایانو سره دغه موجوده تاریخ سند لاسلیک کړ چې د شهیدانو . یتیمانو. کونډو او مظلومو هیوادوالو ارمانونه یې پوره کړل. نو مذاکراتي ټیم د افغانستان د مجاهد ولس ښه دفاع او تمثیل وکړ.

**پوښتنه: افغان ولس ته مو پیغام څه دی؟**

د افغانستان مجاهد ولس ته زما پیغام دا دی چې مغرضین اوس په ډېر دقت سره کار کوي او په داخل او خارج کې کوښښ کوي چې زمونږ دغه لاسته راوړنه او عظیمه فتحې ته بل نوم ورکړي. او د خنډ سره یې مخ کړي. دوی کوښښ کوي او خلکو ته دا نظر ورکوي چې دا سند د اسلامي امارت او د افغانستان د مجاهد ولس فتح نه ده بلکې د صلحې یا بل نوم ورکوي. او غواړي چې زمونږ دغه لاسته راوړنه لاهو کړي او کوښښ کوي چې د جهاد دغه ثمره ختمه او د خاورو سره خاوره کړي. نو زما مجاهد هیواد والو ته دا پیغام دی چې د کافرانو او د هغوی د ملګرو په خبرو غلط نشي. او دښمن ته موقعه ورنه کړي چې زمونږ دغه فتح ختمه کړي.

دوهم مهم پیغام زما ګرانو هیواد والو ته دا دی چې د اسلامي امارت سره په خپل کلک ملاتړ او ژمنې قایم پاتې شي. او دښمن ته په لاس هیڅ داسې موقعه په لاس ورنه کړي چې خلکو او د امارت اسلامي تر منځ د فاصلې سبب جوړیږي. لکه څرنګه چې پخوا د شورویانو د وتلو څخه وروسته دښمن د دې موقع تر لاسه کړه چې زمونږ قرباني د خاورو سره خاورې کړې.

په اخر کې زه د افغانانو سره سره د نړی ټول اسلامي امت څخه غوښتنه کوم چې د اسلامي امارت تر شاه کلک ودریږي. او په کلکه یې هر راز ملاتړ وکړي. ځکه د افغانستان اسلامي امارت د نړې د ټولو مسلمانانو واحد امید دی چې د اسلام مقدس نظام تحقق به راولي. او د اسلامي امت دغه ارمان به انشاء الله پوره کوي. والسلام

# د هوسۍ سره د خبرو کولو معجزه

حضرت انس رضی الله تعالی عنه ویلی چی نبی کریم ﷺ په لار روان وه. په لاره کې څه خلک و چی یوه هوسۍ یې ښکار کړې وه.

په رسۍ یې تړلې وه. هوسۍ چی کله نبی کریم ﷺ ولیدی نو ورته په خبرو شوه چی یا رسول الله ﷺ زه دوه بچیان لرم دغه خلکو ښکار کړم، که ما د لږ وخت لپاره ازاده کړی چی ورشم بچیانو ته تی ورکړم، بیرته دستی رازم.

نبی کریم ﷺ هغو خلکو ته وکتل او ویې فرمایل چی دا هوسۍ د چا ده! هغوی وویل. یا رسول الله ﷺ دا هوسۍ زموږ ده، بیا رسول الله ﷺ هغو ته وفرمایل، دا ازاده کړی بچیان لری چی هغوی ته تی ورکړی. بیرته راځی، هغو وویل یا رسول الله ضمانت یې څوک کوی، نبی کریم ﷺ وفرمایل. زه یې ضامن یم، هغوی هم سمدستی هوسۍ ازاده کړه. هوسۍ ولاړه بچیان یې ماړه کړه. لږ وروسته بیرته راغله، او خلکو په رسۍ بیا وتړل

لږ وروسته بیا نبی کریم ﷺ په هغه لار را تیرېدی هغه هوسۍ یې تر سترگو شوه، نو نبی کریم ﷺ هغه خلکو ته وویل چي د هوسۍ مالک څوک دی، په هغوی کی یوه مالک په گوته کړ ، پیغمبر ﷺ هغوی ته وفرمایل چی دا هوسۍ خرڅوی؟

هغوی وویل چی هوسۍ ستا شوه یا رسول الله ﷺ (یعنی مفته ستا شوه) بیا نبی کریم ﷺ هغوی ته وفرمایل، ازاده یې کړي چی ولاړه شی، هغوی هوسۍ ازاده کړه او هغه ولاړه خپل بچیانو ته (پای)

(د حدیث مبارک اصل متن او منبع)

عن أنس بن مالك رضي الله عنه قال مَرَّ النبي صلى الله عليه وسلم على قوم قد اصطادوا ظبية، فشدوها على عمود فسطاط، فقالت يا رسول الله إني أُخذت ولي خِشفان فإستئذن لي أرضعهما وأعود إليهم ،فقال النبي صلى الله عليه وسلم أين صاحب هذه؟ فقال القوم نحن يا رسول الله قال خلوا عنها حتى تأتي خشفيها ترضعهما وترجع إليكم فقالوا من لنا بذلك؟ قال أنا. فأطلقوها ،فذهبت فأرضعت خشفيها ثم رجعت إليهم، فأوثقوها فمر بهم صلى الله عليه وسلم فقال أين صاحب هذه؟ فقالوا هذا يا رسول الله فقال تبيعونها؟ فقالوا هي لك يا رسول الله ، فقال خلو عنها فأطلقوها فذهبت (المعجم الأوسط للطبراني ١٢/ ٢٨٣ حديث ٥٧٠٥)

